# خراسان غږ

خراسان غږ مجله — اوومه ګڼه

دیني، تاریخي، سیاسي، ادبي او خبري مجله


قَٰتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ (14) وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ وَيَتُوبُ اللهُ عَلَىٰ مَن يَشَآءُ وَاللهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ

له هغو سره وجنګېږئ؛ الله به ستاسي په لاسونو هغوی ته سزا ورکړي، او ذلیل او خوار به یې کړي، او د هغو په مقابل کښې به ستاسي مرسته وکړي او د ډېرو مؤمنانو زړونه به یخ کړي. (14) او د هغوی د زړونو تاؤ به ایسته کړي. او چا ته یې چي خوښه شي د توبې توفیق به هم ورکړي. الله په هر څه پوهېدونکی، د حکمت څښتن دی.

[سُورَةُ التوبة :١٤-١٥]

# درې ورونه درې ستوري




اوومه ګڼه / شنبه 15 محرم ۱۴۴۴هـ

مؤسسة العزائم الإعلامية

# مؤسســـة الـعـــزائم يــې وراڼــدې كـــوي



## تفسير القرآن الكريم
## سُوْرَةُ التَّوْبَة
### اووم درس ۷



**أعوذ بالله من الشيطان الرجيم**

د سورت توبې درس شروع و، مخکې الله عزوجل د اهل کتابو قباحتونه او شرکونه بیان کړل. او اسباب د قتال یې ذکر شو، وس ددې ځای نه رب العالمین د منافقانو صفات ذکر کوي او هغوی ته زجرونه ورکوي، مخکې د حنین جنګ تذکره وشوه نو وس د تبوک جنګ ټول احوال بیانیږي، او دا منافقان به شرمیږي، ځکه دې سورت ته الفاضحه وایي. او د جهاد څخه وروسته پاتې کیدونکو قاعدینو مسلمانانو اعذارو باندې به هم رد وي چې دا موانع د جهاد ندي. او د جهاد په اړه به وعد او وعید، انذار او تبشیر، ثواب او عذاب به هم په مختلفو طریقو سره ذکر شي.

**يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ (38)**

ژباړه: اې مومنانو! څه عذر دی ستاسې کله چې وویل شي تاسې اوځئ په لار د الله تعالی کې، نو درانه شئ تاسې ځمکې ته. آیا خوښ کړی دی تاسې ژوند دنیاوي په بدل د آخرت کې، نو ندی سامان د ژوند دنیاوي په مقابله د آخرت کې مګر لږ دی.

**تفسیر:**

حافظ ابن کثیر وایي:
هَذَا شُرُوعٌ فِي عِتَابِ مَنْ تَخَلَّفَ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي غَزْوَةِ تَبُوكَ حِينَ طَابَتِ الثِّمَارُ وَالظِّلَالُ فِي شِدَّةِ الْحَرِّ وَحَمَارَّةِ الْقَيْظِ.

ددې ځای څخه د هغه چا د ملامتیا بیان پیل کیږي، چې په غزوه تبوک کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وروسته پاتې شوي وو، کله چې میوې پخې وې او د سختې ګرمۍ په موسم کې سیوري هم غوړیدلي وو.

**د تبوک واقعه:**

مدینې په شمال کې ٦٠٠ کلومیتره فاصلې باندې د تبوک مقام پروت دی، په ۹ کال د هجرت باندې چې کله نبي علیه السلام د عربانو څخه فارغ شو، نو د غسان قبیله چې په شام کې واکمنه وه، او د رومیانو حکومت تابع وه، هغوی خوف محسوس کړ او رومیانو ته یې دعوت ورکړ چې نبي علیه السلام سره جنګ وکړي، دې لپاره چې سبا زمونږ لپاره درد سر جوړیږي.
نبي علیه السلام مدینه کې ناست دی او دښمن یې په سلګونو کلومیتره لرې په لړزان دی. نو دغه کفارو د جنګ تیارۍ شروع کړ، کله چې نبي علیه السلام خبر شو د غزوې اعلان یې وکړو او ددښمن مخې ته وتلو او د هغوی په ساحه کې یې د جنګ او مقابلې پریکړه وکړه، نو دا داسې وخت و چې سخته ګرمي وه، او مزل ډیر لرې وو، او مدینه کې فصلونه پخ شوي وو، قجورې رسیدلې وې، سیوري یخ شوي وو، او دا هغه وخت و چې د مدینې خلکو به ټول کال کې ورته انتظار کوو. د سامان قلت هم و، بل خوا منافقان او یهودیان ټول د رومي صلیبیانو خیرخواه او جاسوسان وو، نو پدغه سخت وخت کې جهاد کول ډیر زیات ګران و. منافقانو چلونه جوړول او خپله خو خود پاتې کیدل نور مسلمانان یې هم ځان سره پاتې کول. خو دیرش زره صحابه تیار شو، نبي علیه السلام تبوک ته لاړو، هلته یې ۲۰ ورځې ددښمن انتظار وکړو، خو دښمن الله عزوجل مرعوبه کړ او مقابلې ته یې زړه ښه نه کړ، او شاوخوا قومندانونو او قومونو نبي علیه السلام سره لوظونه وکړل، لکه د أَيْلَه حاکم نبي علیه السلام ته خط راولیږو او یو سپین قچر یې هم د ډالۍ په شکل راولیږو، نبي علیه السلام یې ډالۍ قبوله کړه او یو څادر یې ورته په تحفه کې ورکړ. (صحیح مسلم). د تبوک په سیمه کې ددښمن انتظار په موده کې نبي علیه السلام خالد بن الولید رضي الله عنه ته ۴۰۰ مجاهدین ورکړل، هغه لاړو او دومة الجندل په سیمه یې برید وکړ، الله عزوجل د مجاهدینو کومک وکړ او ددغه سیمې حاکم یې د ښکار کولو پرمهال ونیوو، نبي علیه السلام ته یې راوستو، نبي علیه السلام ورته عفوه وکړه، او هغه سره یې دوه زره اوښان، اته سوه غلامان، څلور سوه زغرې او څلور سوه نیزو ورکولو باندې صلح وکړه. ددغه جهادي سفر څخه مسلمانان سرلوړي راوګرځیدل، بیا دا شام د عمر رضي الله عنه په وخت کې ټول فتح شو. نو الله عزوجل ددې ځای نه د هغه سختۍ حالت او د منافقانو رد عمل او د صحابه وو ایماني کیفیات ذکر کوي.

**[يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا ]:**

دې نه مراد یا خو منافقان دي چې د ایمان دعوه کوي، او یا هغه مسلمانان دي چې د تشویش او د ډار ښکار شوي وو.

**[مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمُ انْفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الْأَرْضِ ]:**

الله عزوجل په ډیرو سختو ټکو دا خلک ملامتوي، زورونه ورته ورکوي، چې کله تاسې د جهاد سنګر ته راوبلل شئ نو په تاسې څه چل وشي چې ځمکه ته درانده شئ ؟ دا ولی داسې حالت تاسې باندې راځي ؟ ستاسې څه عذر دی ؟
په الفاظو کې هم سخت تاکید او عتاب پروت دی، اثاقلتم، د ثُقُل مجردو نه تفاعل ته واوړیدو، او بیا د تثاقلتم څخه اثاقلتم شو نو لفظ څخه هم زیات دروندوالې معلومیږي.
او دې آیت کې دا اول صفت د منافقانو ذکر شوی، چې هغوی د جهاد په وخت کې سستي کوي او مال، دولت او مادیاتو په لور کږیږي.

**[أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الْآخِرَةِ]:**

علامه شوکاني وایي: أَيْ: بِنَعِيمِهَا بَدَلًا مِنَ الْآخِرَةِ.
آیا تاسې ددنیا نعمتونه د آخرت په (ابدي) نعمتونو غوره کوئ ؟
او دا دویم صفت دی د منافقانو، چې آخرت مقابله کې دنیا ته ترجیح ورکوي. ځکه د جهاد څخه وروسته پاتې کیدو علت همدا دنیا ته میلان دی، ولو که خلک ځانته مختلفې حیلې جوړوي.
او دا دواړه صفات نن سبا مسلمانانو کې هم راغلي دي. والله المستعان.

**[فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا قَلِيلٌ]:**

حافظ ابن کثیر وایي: دلته الله عزوجل ددنیاوي نعمتونو څخه مخ اړولو بیان وکړو او آخرت ته یې ترغیب (هڅونه) ورکړه. [تفسیر ابن کثیر]
چې دا اصلا په آخرت باندې کلک ایمان ته ترغیب دی، او کله چې په آخرت باندې د انسان ایمان مضبوط شي نو بیا د الله د رضا لپاره او د جنت نعمتونو او د جهنم عذابونو څخه ځان ژغورلو لپاره د خپل سر سودا کوي، انسان کې ایماني غیرت او په الله توکل زیاتیږي، زړورتیا، عزم، همت او حوصله یې پیاوړې کیږي. او کله چې په آخرت ایمان کمزوری شي نو بیا پدغه زړه کې نفاق، جبن، ډار او کمزوري راټوکیږي. مجاهدینو ورونو! د جنت تذکرې اورئ دې لپآره چې ایمان مو تازه کیږي، لکه حدیث د بخاري مسلم کې رازي:
أَنَّ اللَّهَ تعالى يقول لذلك الرجل يَكُونُ آخَرَ أَهْلِ الْجَنَّةِ دُخُولًا الْجَنَّةَ: تَمَنَّ، فَيَتَمَنَّى، حَتَّى إِذَا انْتَهَتْ بِهِ الْأَمَانِي يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى: تَمَنَّ مِنْ كَذَا، وَتَمَنَّ مِنْ كَذَا، يُذَكِّرُهُ، ثُمَّ يَقُولُ: ذَلِكَ لَكَ وَعَشْرَةُ أَمْثَالِهِ .
جنت ته تر ټولو وروسته داخلیدونکي سړي ته به الله عزوجل وفرمایي: ته نعمتونه وغواړه، نو هغه به نعمتونه غواړي، تر دې چې د هغه ارزوګانې (غوښتنې) به تمامې شي، بیا ورته الله عزوجل نعمتونه وریادوي چې دا وغواړه او دا وغواړه، بیا به ورته وفرمایي: دا (ټول نعمتونه) ستا لپاره دي او ددې لس چنده نعمتونه نور هم ستا لپاره دي.
او حدیث د مسلم کې د ابو ذر رضي الله عنه څخه روایت دي، هغه د رسول الله علیه السلام او هغه د الله عزوجل څخه روایت کوي، فرمایي: «يَا عِبَادِي لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَآخِرَكُمْ وَإِنْسَكُمْ وجنكم قاموا فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ فَسَأَلُونِي فَأَعْطَيْتُ كُلَّ إِنْسَانٍ مَسْأَلَتَهُ مَا نَقَصَ ذَلِكَ مِنْ مُلْكِي شَيْئًا إِلَّا كما ينقص المخيط إذا أدخل في البحر».
ژباړه: ای زما بندګانو کچیرې ستاسې مخکني او وروستني، انسانان او پیریان په یو میدان کې ودریږي، بیا له ما څخه غوښتنې وکړي، او زه هر انسان (او پیري) ته د هغه غوښتل شوی څیز ورکړم، نو دا زما له باچاهۍ (قدرت) څخه دومره څه هم نه کموي لکه یوه ستن چې په بحر کې ښکته کړی شي او هغه د بحر څخه (اوبه) کمې کړي.
الله أكبر! نآشنا تشبیه ده، چې یوه ستن په بحر کې ښکته شي نو یو یا دوه څاڅکو باندې دا بحر هیڅ نه کمیږي.
او دا دنیا خو د الله عزوجل په نزد د ماشي د وزرې هومره حیثیت هم نه لري. ځکه حافظ ابن القیم وایي:
لـو ساوت الدنيا جناح بعوضةٍ **** لم يسق منها الربُ ذا الكفرانِ
لكنها والله أحقر عنده , من ذا الجناحِ القاصر الطيرانِ
کچیرې دنیا د ماشي د وزرې هومره حیثیت هم درلودای نو رب العالمین به کافر ته اوبه هم نه وی ورکړی.

خو قسم په الله دا دنيا د الله عزوجل په نزد د لنډ پرواز کونکي وزر والا (مچ) څخه هم ډېره سپکه ده.

[وس پدې آيت کې الله عزوجل د قعود عن الجهاد نتيجه ذکر کوي، خه چې جهاد ته ونه وځو نو څه به وشي؟ فرمايي تاسې ته به عذاب درکړم او ددين د سرلوړۍ لپاره به نور خلک پيدا کړم]

## إِلَّا تَنْفِرُوا يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ وَلَا تَضُرُّوهُ شَيْئًا وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (39)

ژباړه: که ونه وځئ تاسې (جهاد ته) نو عذاب به درکړي تاسې ته الله تعالی عذاب درد ناک او ستاسې بدله کې به راولي قوم سيوا ستاسې نه او ضرر نشئ ورکولې تاسې الله ته هيڅ ضرر او الله تعالی په هر څيز باندې زيات قدرت لرونکی دی.

### تفسير:

### [يُعَذِّبْكُمْ عَذَابًا أَلِيمًا وَيَسْتَبْدِلْ قَوْمًا غَيْرَكُمْ ]:

دې آيت کريمه کې د جهاد پريښودلو دوه نتيجې ذکر شوي دي:

اول: الله عزوجل فرمايي دردناک عذاب به درکړم، چې جهاد نه کوئ نو عذاب ته ځان تيار کړه. نعوذ بالله. دا مجاهدين چې جهاد کوي د الله د عذاب څخه ډارېږي.

دويم: نور خلک به رب راولي، ستاسې قعود اسلام ته ضرر نه ورکوي. او الله رب العالمين د نورو قومونو په راوستلو زيات قادر دی. داسې خلک چې ددين ضرورت په وخت به سستي نه کوي، جهاد او قتال څخه به نه په شا کيږي، خپلې شخصي ګټې به په اجتماعي ګټو نه غوره کوي.

که يو مشر يا کشر جهاد پريږدي، عالم يا قومندان، مالداره سړی، د استعداد خاوند، د قوم او ملاتړ والا جهاد پريږدي، خو دا جهاد بيا هم نه ختميږي. دا جهاد د کوم شخص پورې تړلی ندی، بلکې اشخاص دې صف پورې تړلي دي.

د طائفې منصورې نښه دا ده، صحيح البخاري او صحيح مسلم کې حديث دی:

«لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي ظَاهِرِينَ عَلَى الْحَقِّ لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ وَلَا مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ كَذَلِكَ» وَفِي صَحِيحِ الْبُخَارِيِّ «وَهُمْ بِالشَّامِ».

زما د امت څخه به يوه ډله هميش په حق باندې غالبه وي، که څوک هغوی يواځې پريږدي يا يې خلاف کوي، دا ورته ضرر نه ورکوي، تر دې چې د الله عزوجل حکم راشي او دوی به هم داسې (غالبه) وي. او صحيح البخاري کې دا زيادت هم دی، چې دوی به په شام کې وي.

او عملا مونږ تاسې ګورو ډېر خلک د جهادي صف څخه لاړل خو جهاد باقي دی، څوک شهيدان شول، خليفه شهيد شي، واليان شهيدان شي، کتيبې کتيبې مجاهدين شهيدان شي، خو جهاد د هيچا په مرګ نه ودريږي.

ځکه شيخ ابو محمد العدناني هم وايي:

ويا جنود الدولة الإسلامية؛ خذوا عنّا كلمات: لا تخشوا على الخلافة، فإن الله تبارك وتعالى يحفظها، ويُصلحُ لها من يقيمها. وإنما اخشوا على أنفسكم، حاسبوها، وتوبوا وأوبوا لربكم.

اې د اسلامي دولت لښکرو! زمونږ څخه بعضې خبرې واخلئ، په خلافت مه ويريږئ، دا به الله تعالی ساتي، او د دې قائم ساتلو لپاره به خامخا څوک برابروي، پخپلو ځانونو ويريږئ، نفسونو سره محاسبه وکړئ، توبې وباسئ، رب ته رجوع وکړئ.

### [وَاللَّهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ]:

حافظ ابن کثير وايي: قَادِرٌ عَلَى الِانْتِصَارِ مِنَ الْأَعْدَاءِ بِدُونِكُمْ. [تفسير ابن کثير]

الله عزوجل ستاسې پرته هم له دښمنانو څخه انتقام اخستلو باندې قادر دی.

نو دا ټلک تهديد او سخت وعيد دی.

[د تبوک غزوې احوال الله عزوجل شروع کړي وو، خو منځ کې دا خبره بيانوي چې ګوره کله چې نبي عليه السلام بيخي يواځې و، فقط ابو بکر ورسره ملګری و، هغه وخت يې چا نصرت کړی و؟ آيا تاسې هلته وئ چې نبي عليه السلام مو د قريشو کفارو څخه ژغورلی وای؟ نو هغه رب يې بيا هم په کومک کولو قادر دی]

## إِلَّا تَنْصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا ثَانِيَ اثْنَيْنِ إِذْ هُمَا فِي الْغَارِ إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا فَأَنْزَلَ اللَّهُ سَكِينَتَهُ عَلَيْهِ وَأَيَّدَهُ بِجُنُودٍ لَمْ تَرَوْهَا وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَى وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا وَاللَّهُ عَزِيزٌ حَكِيمٌ (40)

ژباړه: که امداد نه کوئ تاسې ددې رسول سره نو يقينا امداد کړی دی دده سره الله تعالی، کله چې ويستلی و ده لره کافرانو، دويم و د دوو څخه، کله چې دواړه په غار کې وو، کله چې وويل رسول عليه السلام ملګري خپل ته، مه خفه کيږه يقينا الله تعالی زمونږ ملګری دی، پس راوليږله الله تعالی تسلي په هغه باندې او کلک يې کړو په داسې لښکرو سره چې تاسې هغه نه ليدلې او وګرځوله الله تعالی کلمه د کافرانو ښکته او کلمه د الله تعالی هغه اوچته ده، او الله تعالی زورآور دی حکمتونو والا دی.

### [إِلَّا تَنْصُرُوهُ فَقَدْ نَصَرَهُ اللَّهُ إِذْ أَخْرَجَهُ الَّذِينَ كَفَرُوا]:

کله چې نبي عليه السلام د مکې څخه هجرت کوو، هر طرف قريشو خپل جاسوسان خواره کړي وو، په نبي عليه السلام او ابو بکر رضي الله عنه هر يو باندې سل اوښان انعام مقرر و، [لکه نن سبا چې د اسلامي خلافت په مشرانو د موجوده زمانې د کفارو لخوا مليونونو ډالر مقرر دي] نبي عليه السلام او ابو بکر رضي الله عنه غار ثور کې پناه اخستې وه، او دا کفار ددغه غار خولې پورې راغلي و، چې ابو بکر رضي الله عنه سخت وارخطا شو، حديث کې راځي:

عَنْ أَنَسٍ أَنَّ أَبَا بَكْرٍ حَدَّثَهُ قَالَ: قُلْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ فِي الْغَارِ: لَوْ أَنَّ أَحَدَهُمْ نَظَرَ إِلَى قَدَمَيْهِ لَأَبْصَرَنَا تَحْتَ قَدَمَيْهِ قَالَ: فَقَالَ: «يَا أَبَا بَكْرٍ مَا ظَنُّكَ بِاثْنَيْنِ اللَّهُ ثَالِثُهُمَا» أَخْرَجَهُ البخاري.

انس رضي الله عنه فرمايي چې ابوبکر رضي الله عنه ورته بيان کړی و: مونږ چې غار کې و نو ما نبي عليه السلام ته وويل: کچيرې پدوی کې يو تن هم خپلو خپو ته وګوري نو مونږ به د خپلو قدمونو د لاندې وويني، نو هغه وفرمايل: ای ابوبکره، ستا د هغه دوه کسانو په اړه څه فکر دی چې الله عزوجل يې دريم (ملګری) دی.

لهذا ددين نصرت الله عزوجل خامخا کوي، کله چې ظاهري اسباب په کامله معنا استعمال شي نو د رب کومک خامخا راځي. نو هغه وخت چې رب خپل دين او ددين وارثان وساتل نو بيا يې هم ساتي، خو دغه مبارک کاروان کې چې مونږ تاسې استعمال شو دا د سعادت مقام دی.

حاصله معنا يې دا شوه: [إِنْ تَرَكْتُمْ نصره فالله سيتكفل بِهِ] که تاسې د هغه صلی الله عليه وسلم نصرت پريښود نو الله عزوجل به يې ساتنه (روزنه) وکړي.

[ثَانِيَ اثْنَيْنِ]: أَيْ: أَحَدَ اثْنَيْنِ، وَهُمَا رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبُو بكر الصديق رضي الله عنه. ددوه څخه يو و، او دا دوه کسان رسول الله صلی الله عليه وسلم او ابو بکر صديق رضي الله عنه وو.

### [إِذْ يَقُولُ لِصَاحِبِهِ]:

دلته صاحب څخه مراد ابو بکر صديق رضي الله عنه دی، لکه احاديث د بخاري مسلم وغيره کې راغلي دي. نو ابو بکر رضي الله عنه صحابيت په قطعي الثبوت دلائلو او متواتر سندونو سره ثابت دی، کوم روافض چې ددې نه انکار کوي، دوی د قرآن نه منکر دي او په اتفاق د امت باندې مرتد دي، نر او ښځې به يې وژل کيږي، لکه اسلامي خلافت چې پرې شروع کړې ده. وفقها الله المزيد.

لکه دې ځل محرم ۱۴۴۴ هـ ق کې هم کابل ښار څو ورځې پرلپسې د سلګونو روافضو د مردارېدو شاهد و.

### [لَا تَحْزَنْ إِنَّ اللَّهَ مَعَنَا]:

دا طبعي ويره ده، په هر انسان باندې راځي، ابوبکر رضي الله عنه وېرار شو خو دا کوم عيب ندی، انبياء کرام هم ډار شوي، موسی عليه السلام امسا نه چې کله مار جوړ شو هغه ترې منډه کړه، ابراهيم عليه السلام هم د هغه ملائکو نه وډار شو، ځکه خوراک يې نه کوو او داسې نور صحابه کرام هم ډار شوي دي.

او مفسرينو دا هم ليکلي چې دلته ابو بکر رضي الله عنه په نبي عليه السلام باندې وډار شو او دا خو کمال دی.

او کومو رواياتو کې چې راغلي چې دلته جولاګې ځاله جوړه کړه او يا کوترې دلته هګۍ واچولې نو دا خبره سمه نده، روايات کمزوري دي بلکې دا غار بيخي خلاص و.

### [وَجَعَلَ كَلِمَةَ الَّذِينَ كَفَرُوا السُّفْلَى وَكَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا ]:

حافظ ابن کثير وايي: قال ابن عباس يعني بكلمة الذين كفروا الشرك وكلمة اللَّهِ هِيَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ. [تفسير ابن کثير]

عبد الله بن عباس رضي الله عنه فرمايي چې د کافرو کلمې څخه مراد شرک دی او د الله کلمه لا اله الا الله (توحيد) ده.

[مخکې الله رب العالمين د جهاد څخه وروسته پاتې کيدونکو لپاره سخت وعيد بيان کړ، او د خپل رسول د نصرت خبره يې وکړه نو وس ټولو ته په قتال باندې امر کوي]

## انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ (41)

ژباړه: ووځئ تاسې که سپک ياست او که درانده ياست، او جهاد کوئ په مالونو خپلو سره او په نفسونو خپلو سره په لار د الله تعالی کې،

دا ډېره غوره ده ستاسې لپاره که تاسې پوهیږئ.

### تفسیر:

### [انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا]:

دې حکم ته نفیر عام ویل کیږي، چې هر مکلف کس به قتال لپاره وځي.

عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْفَتْحِ فَتْحِ مَكَّةَ «لَا هِجْرَةَ وَلَكِنْ جِهَادٌ وَنِيَّةٌ، وَإِذَا اسْتُنْفِرْتُمْ فَانْفِرُوا»

صحیح البخاري (إیمان باب 41 وصید باب 10 وجهاد باب 1) وصحیح مسلم (جهاد حدیث 2) وسنن الترمذي (سیر باب 32) .

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم د فتح مکې په ورځ وفرمایل: نور هجرت نشته مګر جهاد کول شته او نیک نیت هم شته، او کله چې له تاسې څخه د وتلو مطالبه وشي نو بیا اووځئ.

او دا دوه صورتونه دي:

اول: کله چې دښمن د مسلمانانو په ملک او علاقه حمله وکړي نو جهاد په ټولو مسلمانانو فرض عین ګرځي او په ټولو وتل لازم وي.

دویم: کله چې خلیفة المسلمین یا د هغه نائب والي د نفیر (وتلو) عمومي أمر وکړي نو بیا په ټولو وتل لازم دي.

" خفافا وثقالا " په تفسیر کې امام طبري راوړي: شُبّانا وکهولا، شبابا وشیوخا، أغنیاء ومساکین، مشاغیل وغیر مشاغیل، رُکبانا ومُشاة، "الثقیل"، الثَّقِيلُ الَّذِي لَهُ الضَّيْعَةُ، فَهُوَ ثَقِيلٌ يَكْرَهُ أَنْ يُضَيِّعَ ضَيْعَتَهُ وَيَخْرُجَ، وَالْخَفِيفُ الَّذِي لَا ضَيْعَةَ لَهُ.

ځوانان او بوډاګان، مالدار او غریبانان، کارونو والا او اوزګار، سپاره او پیاده، درونند هغه چا ته ویل کیږی چې تجارت وغیره لري او د دې خرابیدل بد ګڼي او سپک هغه څوک چې څه کار یې نه وي.

مُنْفَرِدِينَ أَوْ مُجْتَمِعِينَ، مَنْ لَا عِيَالَ لَهُ وَمَنْ لَهُ عِيَالٌ، مَنْ يَسْبِقُ إِلَى الْحَرْبِ كَالطَّلَائِعِ، وَمَنْ يَتَأَخَّرُ كَالْجَيْشِ.

یواځې یواځې او ډلې ډلې (ووځئ)، مجرد او هغه څوک چې بچیان لري ، هغه څوک چې جنګ کې مخکې تلونکي دي لکه سرلښکرې قطعې او هغه څوک چې وروسته روان وي لکه عمومي لښکر.

فتح القدیر کې لیکي: هِيَ مُحْكَمَةٌ وَلَيْسَتْ بِمَنْسُوخَةٍ، وَيَكُونُ إِخْرَاجُ الْأَعْمَى وَالْأَعْرَجِ بِقَوْلِهِ لَيْسَ عَلَى الْأَعْمى حَرَجٌ وَلا عَلَى الْأَعْرَجِ حَرَجٌ وَإِخْرَاجُ الضَّعِيفِ وَالْمَرِيضِ بِقَوْلِهِ لَيْسَ عَلَى الضُّعَفاءِ وَلا عَلَى الْمَرْضى مِنْ بَابِ التَّخْصِيصِ.

دا آیت کریمه محکم دی منسوخ ندی، او له دې حکم څخه ړوند او ګوډ وتل (مستثنی کیدل) د هغه نص له امله چې الله فرمایي: نشته دی په ړوند باندې څه ګناه او نه هم په ګوډ باندې څه ګناه، او د کمزوري او مریض وتل په هغه آیت سره چې الله فرمایي: نشته دی په کمزوورو خلکو او په مریضانو ګناه، دا د تخصیص د قبیلې څخه دي.

یعني دا آیت کریمه منسوخ ندی بلکې ددې څخه دا معذوره خلک د نورو دلایلو په بناء مستثنی شوي دي. او د صحابه وو تعامل هم پدې دلالت کوي.

حدثنا هدبة بن خالد، ثنا حماد بن سلمة، عن ثابت، عَنْ أَنَسٍ، أَنَّ أَبَا طَلْحَةَ، رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَرَأَ سُورَةَ بَرَاءَةَ حَتَّى بَلَغَ هَذِهِ الْآيَةَ {انْفِرُوا خِفَافًا وَثِقَالًا وَجَاهِدُوا بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ} [التوبة: 41] فَقَالَ: أُرَانَا اسْتُنْفِرْنَا شُيُوخًا وَشَبَابًا، بَنِيَّ جَهِّزُونِي. قَالُوا: يَا أَبَانَا، قَدْ غَزَوْتَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَغَزَوْتَ مَعَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، فَنَحْنُ نَغْزُو عَنْكَ. فَأَبَى «فَجَهَّزُوهُ فَغَزَا الْبَحْرَ فَمَاتَ فِي الْبَحْرِ فَلَمْ يَجِدُوا جَزِيرَةً يَدْفِنُوهُ فِيهَا سَبْعَةَ أَيَّامٍ فَلَمْ يَتَغَيَّرْ» . [الآحاد والمثاني لابن أبي عاصم وهو صحیح]

ژباړه : ابو طلحه رضي الله عنه سورت توبه لوستله، تر دې آیت چې راورسید ، ویې ویل: مونږ ته ښکاري چې مونږ ټولو ته د وتلو امر کړی شوی دی، بوډاګانو او ځوانانو ټولو ته، بچو ته یې وویل، ما تیار کړئ، هغوی ورته وویل: ای پلاره ته خو نبي علیه السلام، ابو بکر او عمر رضي الله عنهما سره جنګونو کې شریک شوې یې، وس به مونږ ستا په ځای جنګ وکړو، هغه ونه منله، نو تیار یې کړ ، او ابو طلحه رضي الله عنه د بحر غزا ته لاړ او بحر کې وفات شو، جزیره نه وه چې دا یې خښ کړې وای، اووه ورځې ده باندې تیری شوې او هیڅ قسم تغیر په کې نه وو راغلی.

وَقَالَ ابْنُ جَرِيرٍ : حَدَّثَنِي يَعْقُوبُ حَدَّثَنَا ابْنُ عُلَيَّةَ حَدَّثَنَا أَيُّوبُ عَنْ مُحَمَّدٍ قَالَ شَهِدَ أَبُو أَيُّوبَ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَدْرًا ثُمَّ لَمْ يَتَخَلَّفْ عَنْ غزاة للمسلمين إِلَّا عَامًا وَاحِدًا قَالَ وَكَانَ أَبُو أَيُّوبَ يقول: قال الله تعالى: انْفِرُوا خِفافاً وَثِقالاً فَلَا أَجِدُنِي إِلَّا خَفِيفًا أَوْ ثَقِيلًا. تفسیر الطبري 6/ 378.

امام ابن جریر الطبري نقل کړیدي: مقداد بن أسود رضي الله عنه هم د حمص په میدان کې په مات هډوکي سره جهاد ته وتلې و. او ویلې یې چې الله عزوجل فرمایي : سپک او درانه ټول ووځئ.

دغه رنګ حبان بن زید نه یې نقل کړي دي چې مونږ صفوان بن عمرو د حمص والي سره د جراجمه په لور جهاد لپاره روان و، یو بوډا سړی و، چې په سترګو باندې یې وریځې راغلې وی، مونږ ترې تپوس وکړو ته ولې راغلې یې ؟ ته خو معذوره یې ؟ هغه وویل چې الله عزوجل فرمایي : سپک او درانه ټول ووځئ.

### [ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ]:

حافظ ابن کثیر ددې تفسیر داسې کوي:

أَيْ هَذَا خَيْرٌ لَكُمْ فِي الدُّنْيَا والآخرة لأنكم تَغْرَمُونَ فِي النَّفَقَةِ قَلِيلًا فَيُغْنِمُكُمُ اللَّهُ أَمْوَالَ عَدُوِّكُمْ فِي الدُّنْيَا مَعَ مَا يَدَّخِرُ لَكُمْ مِنَ الْكَرَامَةِ فِي الْآخِرَةِ.

دا جهاد غوره دی ستاسې لپاره په دنیا او آخرت کې ځکه چې تاسې د خپلې نفقې څخه لږ تاوان کوئ نو الله تعالی تاسې ته په دنیا کې ددښمن مالونه په غنیمت کې درکوي، سره ددې چې آخرت کې تاسې لپاره عزت هم ذخیره کوي.

[دې آیت کریمه کې الله عزوجل د منافقانو نور څلور صفات بیانوي چې دوی د تبوک غزا څخه وروسته وروسته کیږي خو کچیرې دا نږدې غزا وی او دوی ته پکې غنیمت ښکاریدای نو بیا دوی خامخا تلل یعني ددوی ټول هم او غم دنیا ده]

### لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا لَاتَّبَعُوكَ وَلَكِنْ بَعُدَتْ عَلَيْهِمُ الشُّقَّةُ وَسَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ يُهْلِكُونَ أَنْفُسَهُمْ وَاللَّهُ يَعْلَمُ إِنَّهُمْ لَكَاذِبُونَ (42)

ژباړه: که (غزوه تبوک) وی سامان آسان حاصلیدونکی او سفر درمیانه ، خامخا دوی به تلی وی تا سره لیکن لری شوی دی په دوی باندې سفر او زر دی چې قسمونه به وکړي دوی په الله تعالی سره که طاقت لرلې مونږه خامخا وتلي به وی مونږ تاسې سره، هلاکوي دوی ځانونه خپل (په دروغ قسم سره) او الله تعالی پوهیږي، چې یقینا دوی دروغژن دي.

### [لَوْ كَانَ عَرَضًا قَرِيبًا وَسَفَرًا قَاصِدًا]:

عرض د دنیا سازوسامان ته ویل کیږي، چې د انسان نفس یې غواړي. قریب معنا چې حصول یې آسان وي. نو حاصل یې دا شو: غَنِيمَةٌ قَرِيبَةٌ غَيْرُ بَعِيدَةٍ. نږدی ترلاسه کیدونکی غنیمت مراد دی. او رومیانو نه مال غنیمت اخستل دې منافقانو ته ناممکنه ښکاره کیده ځکه دې غزا ته نه تلل.

وَسَفَراً قاصِداً أَيْ: سَفَرًا مُتَوَسِّطًا بَيْنَ الْقُرْبِ وَالْبُعْدِ.

قاصدا معنا درمیانه مزل وي، چې زیات تکلیف پکې نه وي.

ځکه دا اوږده مزلونه منافقانو لپاره ډیر سخت وو، دوی کې ایمان نه و. کنه دغه جهادي سفرونه د انسان د ژوند نآشنا او خوشګوار لمحات وي. دا په غرونو ګرنګونو کې شپې کول، دا په یخنۍ او واوره کې د الله لپاره پیره کول، او دا په وږي نس ورځې ورځې مزلونه کول، چې د پاسه دربانديې ډرون ګرځي او ټوله توجه دې الله عزوجل طرف ته وي، او ځای په ځای وایې چې ربه دا ستا لپاره دي، په خوړونو کې د چینې اوبو څکل او دمه کول او مونځونه کول، ددې سفرونو خوند او لذت مومنانو ته معلومیږي.

### [الشُّقَّةُ]:

ابو عبید او نور وایي: إِنَّ الشُّقَّةَ السَّفَرُ إِلَى أَرْضٍ بَعِيدَةٍ. ژباړه: هغه سفر چې لرې ځمکې ته وي. او انسان پرې مشقت او تکلیف ته رسیږي.

### [وَسَيَحْلِفُونَ بِاللَّهِ لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ يُهْلِكُونَ أَنْفُسَهُمْ]:

او ځانونه څنګه هلاکوي، نو داسې چې یو خو کار یې غلط کړی، جهاد څخه وروسته پاتې شوي دي، او بیا پرې قسمونه هم کوي. نو عذر ګناه بدتر از ګناه. غلط کار لپاره عذر کې ددروغو قسم کول د هلاکت سبب دی.

نو دې آیت کې هم د منافقانو یو څو صفات بیان شول.

اول: کله چې مال غنیمت امید وي بیا جهاد ته هم ځي.

دویم: کله چې سفر آسان وي، او سخته پکې نه وي نو بیا دا منافقان منډې راوهي. او د مومنانو طرز دا دی چې په سخته کې استقامت اختیاروي.

دریم: د جهاد څخه پاتې کیدو لپاره غیر شرعي عذرونه وړاندې کوي.

څلورم: دروغ وایي او ددروغو قسمونه کوي.

چې دا څلور صفات نن سبا اکثره مسلمانانو کې راغلي دي. والله المستعان.

[پدې آیت کریمه کې د علماؤ دوه اقوال دي: اول دا چې عمرو بن میمون وایي پدې کې نبي علیه السلام ته د مینې ډک عتاب دی چې تا ولې هغه منافقانو ته د جهاد

څخه پاتې کېدو اجازت ورکړو چې ددروغو عذرونه يې وړاندې کول، بايد تا يې تحقيق کړی وی، نو تنبيه ورته ورکړل شوه او دويم دا چې مکي، نحّاس او مهدوي وايي دا افتتاح د کلام ده، لکه خلک وايي: أَصْلَحَكَ اللَّهُ، وَأَعَزَّكَ، وَرَحِمَكَ، كَيْفَ فَعَلْتَ كَذَا؟ خو فتح القدير کې وايي چې دا اول قول پدې موضع کې زيات مناسب دی]

### عَفَا اللَّهُ عَنْكَ لِمَ أَذِنْتَ لَهُمْ حَتَّى يَتَبَيَّنَ لَكَ الَّذِينَ صَدَقُوا وَتَعْلَمَ الْكَاذِبِينَ (43)

ژباړه: بخښنه کړې ده تا ته الله تعالی، ولې اجازت وکړو تا دويته، تر هغې پورې چې ښکاره شوی وی تا ته هغه کسان چې رشتيا وايي او پيژندلې وی تا دروغژن.

### تفسير:

الله عزوجل جهادي امير او قاضي ته ادب ښايي، چې تحقيق به کوئ، بې دليله دعوه به د چا نه منئ.
علامه شوکاني وايي:
وَقَدْ رَخَّصَ لَهُ سُبْحَانَهُ فِي سُورَةِ النُّورِ بِقَوْلِهِ: فَإِذَا اسْتَأْذَنُوكَ لِبَعْضِ شَأْنِهِمْ فَأْذَنْ لِمَنْ شِئْتَ مِنْهُمْ وَيُمْكِنُ أَنْ يُجْمَعَ بَيْنَ الْآيَتَيْنِ بِأَنَّ الْعِتَابَ هنا متوجّه إِلَى الْإِذْنِ قَبْلَ الِاسْتِثْبَاتِ حَتَّى يَتَبَيَّنَ الصَّادِقَ مِنَ الْكَاذِبِ، وَالْإِذْنَ هُنَالِكَ مُتَوَجِّهٌ إِلَى الْإِذْنِ بَعْدَ الِاسْتِثْبَاتِ وَاللَّهُ أَعْلَمُ. [فتح القدير]
او يقينا الله تعالی نبي عليه السلام ته په سورت نور کې د اجازت ورکولو رخصت ورکړی و، پدې قول سره: کچيرې دوی اجازت وغواړي ستا نه د بعضې کارونو لپاره نو چاته چې ستا خوښه شي اجازت ورکړه. [او دلته يې په اجازت ورکولو تنبيه ورکړه] نو ددواړو آيتونو ترمنځ جمع داسې ممکنه ده چې دلته د خبرې پوخوالي يعنې د ريښتوني د دروغجن څخه جلا کيدو څخه مخکې اجازت ورکولو ته زورنه متوجه ده، او هلته اجازت د خبرې پوخوالي څخه وروسته متوجه دی. والله أعلم.
نو معلومه دا شوه چې امير او قاضي به تبين کوي، دروغ او رشتيا به معلوموي، کره او کوټه به جدا کوي، کنه هر سړی به وايي زما عذر دی، زه دا کار نشم کولای، زه عذر لرم، دې تشکيل ته نشم تللی او امير او قاضي به ورته وايي چې سمه ده وروره، ته پاتې شه. نه، بلکې دليل به ترې غواړي چې څه عذر لری، دليل بيان کړه او ددليل تنقيح به بيا کيږي چې خبره واضحه شي خلک يې وپيژني، سبا ورسره هماغه شان تعامل وکړي.

علامه شوکاني ددې آيت په تفسير کې دا هم وايي:
وَفِي الْآيَةِ دَلِيلٌ عَلَى جَوَازِ الِاجْتِهَادِ مِنْهُ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَالْمَسْأَلَةُ مُدَوَّنَةٌ فِي الْأُصُولِ. وَفِيهَا أَيْضًا: دَلَالَةٌ عَلَى مَشْرُوعِيَّةِ الِاحْتِرَازِ عَنِ الْعَجَلَةِ وَالِاغْتِرَارِ بِظَوَاهِرِ الْأُمُورِ. [فتح القدير]
ژباړه: او دا آيت د نبي عليه السلام داجتهاد په جائز کيدو دليل دی، او دا مسئله د اصولو په کتابونو کې جمع شوې ده. او پدې آيت کې په ظاهري کارونو زر نه دوکه کېدل او د عجلې (جلتۍ) څخه ځان ساتلو مسئلې جواز باندې دليل هم شته. او يوه مهمه مسئله پدې آيت کې دا ده چې نبي عليه السلام د غيبو علم نه درلودو ځکه يې منافقانو دروغ او رشتيا په غيبو سره نشو جلا کولای.
[دې ايت کريمه کې الله عزوجل د مومنانو طرز عمل ذکر کوي، چې کله د جهاد غږ وشو، منافقانو خو عذرونه او بهانې جوړول شروع کړل، او اجازه يې غوښتله خو مومنانو د شهادت په نيت ځانونه سينګار کړل او غزوې ته روان شول]

### لَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ أَنْ يُجَاهِدُوا بِأَمْوَالِهِمْ وَأَنْفُسِهِمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالْمُتَّقِينَ (44)

ژباړه: اجازت نه غواړي ستا نه هغه کسان چې ايمان لري په الله تعالی، او په ورځ وروستنۍ، ددې نه چې جهاد وکړي په مالونو خپلو سره او په نفسونو خپلو سره او الله تعالی پوهه دی په متقيانو باندې.

### تفسير:

نو دې آيت کې د مومن او منافق پيژندلو لپاره ښايسته معيار ښودل شوی، چې چا په سخته کې اجازه طلب کوله او ښکاره عذر يې نه و نو دا سړی يا خو منافق دی او يا د منافقانو صفت پکې راغلی دی. او مومنانو صفت دا دی:
عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، أَنَّهُ قَالَ: «مِنْ خَيْرِ مَعَاشِ النَّاسِ لَهُمْ، رَجُلٌ مُمْسِكٌ عِنَانَ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ، يَطِيرُ عَلَى مَتْنِهِ، كُلَّمَا سَمِعَ هَيْعَةً، أَوْ فَزْعَةً طَارَ عَلَيْهِ، يَبْتَغِي الْقَتْلَ وَالْمَوْتَ مَظَانَّهُ. أخرجه مسلم.
په خلکو کې د غوره ژوند والا هغه کس دی چې د الله په لار کې يې خپل د اس واګې رانيولې وي، په شا يې الوځي، هر کله چې ددښمن د راتلو له امله د ډار يا خوف غږ اوري نو په الوتلو هلته ورځي، قتل او مرګ په هغه ځايونو کې لټوي چې هلته پيدا کيږي.

[پدې آيت کريمه کې هم منافقانو ته زجر دی او د هغوی څخه ايمان سلب شوی دی، معنا دا چې څوک تا نه دتبوک پدې سخته کې د جهاد څخه پاتې کيدو اجازت غواړي نو دا خلک بې ايمانه دي، الله أکبر، څومره کلک تهديد دی خو نن سبا خلکو ته دا ډيره وړه خبره ښکاري]

### إِنَّمَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَارْتَابَتْ قُلُوبُهُمْ فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ (45)

ژباړه: يقينا اجازت غواړي ستا نه (د جهاد څخه پاتې کيدلو) هغه کسان چې نه لري ايمان په الله تعالی او په ورځ د آخرت او شک کړی دی زړونو ددوی پس دوی د شک له امله ګډوډ دي.

### تفسير:

### [إِنَّمَا يَسْتَأْذِنُكَ الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ]:

ايمان بالله او ايمان بالآخره يې ذکر کړيدي، نو دا ځکه چې دا دواړه د جهاد مرکزي علتونه دي، دا دواړه ايمانيات انسان قعود ته نه پريږدي.

### [فَهُمْ فِي رَيْبِهِمْ يَتَرَدَّدُونَ]:

دغه وخت کې منافق سخت حيران وي، چې څه وکړم، کوم خوا وتختم، ددې جهاد نه به څنګه خلاص شم، کافرانو سره شم که نه دلته مومنانو سره پاتې شم، لار ترې ورکه وي. ځمکه ورته ځای نه ورکوي.
[پدې آيت کريمه کې الله رب العالمين د منافقانو بل صفت ذکر کوي چې باتې وهي خو عمل نه کوي، چې هغوی دا ويل: لَوِ اسْتَطَعْنَا لَخَرَجْنَا مَعَكُمْ، زمونږ وسع نشته، کنه مونږ خو وتلو، نو الله عزوجل به وفرمايي چې دروغ وايي، که ددوی اراده وی نو دوی به تياری کړی وی.]

### وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لَأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً وَلَكِنْ كَرِهَ اللَّهُ انْبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ اقْعُدُوا مَعَ الْقَاعِدِينَ (46)

ژباړه: او که دوی نيت لرلې د وتلو د جهاد خامخا دوی به تياری کړی وی هغې لره د سامان ليکن بد ګڼلی دی الله تعالی پورته کيدل ددوی (د جهاد لپاره) نو منع يې کړل دوی لره (د وتلو د جهاد نه) او وويل شول دوی ته کينئ تاسې د کيناستکو سره.
تفسير:
غزوه تبوک داسې غزا وه چې د منافقانو ددغه لاپو حقيقت يې واضحه کړو، دوی به ويل چې مونږ هم مجاهدين يو، هر وخت جهاد لپاره تيار يو. خو عجيبه دا ده چې ۵۰ او ٦۰ کاله کې چيرته سنګر ته حاضر نشو، نه يې نښه ويشتل زده کړل، نه يې لمبل زده کړل، نه يې د جنګ لپاره جسم تيار کړو او نه يې اسباب تيار کړل، ټوله خواري يې د کور، دکان، ځمکې او جائيداد لپاره ده. او بيا چې مجلس کې کيني وايي مونږ خو جهاد اکبر کوو، خپل نفس سره جهاد کوو او مجاهدين خو جهاد اصغر کوي، چې دا په نبي عليه السلام باندې دروغ تړي، او نفس سره که دغه خلکو جهاد کولای نو نفس به يې د جنګ ميدان او د حورو سودا کولو بازار ته به يې راوړی وی.
عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ مَاتَ وَلَمْ يَغْزُ، وَلَمْ يُحَدِّثْ بِهِ نَفْسَهُ، مَاتَ عَلَى شُعْبَةٍ مِنْ نِفَاقٍ» أخرجه مسلم.
څوک چې مړ شو او غزا يې ونه کړه، او ځان يې هم ورته تيار نه کړو نو دا د منافقت په يوه څانګه مړ شو.
بيا دلته يو حديث نه بعضې خلک استدلال کوي چې حديث کې راځي چا چې په صدق زړه سره شهادت وغوښتو، الله عزوجل به يې د شهداءو مرتبې ته ورسوي، اګر که په خپله بستره مړ شي، نو وايي مونږ شهادت غواړو، لهذا زمونږ مرتبه به د مجاهدينو په شان وي. سبحان الله، يو خوا مجاهد خپل سر قربانوي، د نړۍ کفارو مظالمو او تکليفونو ته يې خپل ځان کلک نيولی او بل خوا يو کس په نرم پالنګ خوبونه کوي، او ځان دغه مجاهد سره برابروي. نو دې حديث څخه ورته استدلال سم ندی، ځکه حديث داسې دی:
عن سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ، أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: «مَنْ سَأَلَ اللهَ الشَّهَادَةَ بِصِدْقٍ، بَلَّغَهُ اللهُ مَنَازِلَ الشُّهَدَاءِ، وَإِنْ مَاتَ عَلَى فِرَاشِهِ» أخرجه مسلم.
ژباړه: چا چې د الله تعالی څخه په رښتيا سره شهادت وغوښت، الله عزوجل به يې د شهيدانو مقامونو ته ورسوي، اګر که دا په خپله بستره باندې مړ شي.
دا خلک د (بصدق) قيد ورسره نه مراعات کوي، نبي عليه السلام فرمايي چې په رشتيا سره يې شهادت غوښتلو نو رشتيا سره شهادت غوښتلو څه معنا ده ؟ تاسې وګورئ دې آيت کې د صدق مصداق ذکر شوی. رب العالمين فرمايي، چې دوی به تياری کړی وی، جهادونو ته به تلي وو، خو چې ندي تللي معلوميږي چې خپله دعوه کې صادقه ندي. لهذا دې حديث نه مراد هغه خلک دي، چې مجاهدين دي، شهادتونو پسې ګرځي، خو بيا

هم ورته په خپله بستره مرګ راشي لکه خالد بن وليد رضي الله عنه نو دغه خلکو ته الله عزوجل د شهيد مرتبه ورکوي.
همدغه رنګ ددې حديث نه وروسته امام مسلم همدا حديث راوړی، (من مات ولم يغز ) اشاره ده دې ته چې فقط آرزوګانو باندې ګورې شهادت نه ميلاويږي، يو څه به کوې نو شهادت به تر لاسه کوې. مثال يې داسې دی، يو کس دی وايي چې زه د شپې قيام الليل کوم، خو نه ورته تياری کوي، نه اسباب برابروي، بلکې بې غمه شپې څملي او سهار راپاڅي، ټول کال همداسې تير کړي، او بل خوا يو مسلمان دی هغه ټول کال قيام الليل او تهجد کوي، نو آيا دا دواړه برابر دي ؟ نه، ندي برابر، ځکه دا اول کس خو فقط د خولې خبرې کوی، پدې ټول کال کې يوه ورځ هم راپانڅيدو، د قيام الليل اسباب يې ندي برابر کړي، او فقط په خوله دعوه کوي، نو همداسې د جهاد خبره هم ده.

### [وَلَكِنْ كَرِهَ اللَّهُ انْبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ]:

وس الله رب العالمين ددوی د عدم توفيق علت بيانوي چې دوی ته د جهادونه توفيق ولې نه ميلاويږي ؟ جواب دا دی چې دا خلک د الله عزوجل ندي خوښ، سم خلک ندي، نو ځکه ددوی وتل رب نه خوښوي، داسې قيمتي عمل لپاره د پاکو او سپيڅلو مجاهدينو انتخاب کوي، هر څوک ددې عمل لايق نه وي.
(ثبطه تثبيطا) خنډ جوړول او يو کس د کار څخه منع کولو ته وايي.
د جهاد څخه وروسته پاتې کېدو يو اصلي علت دې آيت کې بيان شو، خلک خو ځان ته قسما قسم عذرونه او حيلې جوړوي، خو الله عزوجل خبره واضحه کړه چې دغه خلک د رب العالمين بد راځي نو ځکه يې خپل لار کې نه استعمالوي.

### [وَقِيلَ اقْعُدُوا مَعَ الْقَاعِدِينَ]:

دوی ته وويل شول، چا ورته ويل ؟ يا تقدير مراد دی، او يا هم د رسول الله صلى الله عليه وسلم او صحابه وو قول مراد دی.
قاعدين نه مراد معذوره خلک دي. ماشومان، زنانه، مريضان او بوډاګان وغيره.
[پدې آيت کريمه کې الله عزوجل مومنانو ته تسلي ورکوي، چې دې منافقانو او ناکاره خلکو وتلو ته مه خوشحاليږئ، ددوی وتلو باندې کوم خير نه مرتب کيږي، بلکې ددوی وتل ستاسې لپآره زيات نقصاني دي. او ددغه منافقانو به يو څو قبيح صفات هم بيان کړي.]

### لَوْ خَرَجُوا فِيكُمْ مَا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا وَلَأَوْضَعُوا خِلَالَكُمْ يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ وَفِيكُمْ سَمَّاعُونَ لَهُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ بِالظَّالِمِينَ (47)

ژباړه: که دوی وتلي وای په لښکر ستاسې کې، نه به وو زيات کړی دوی تاسې لره مګر نقصان او خامخا منډې به وهلي وی دوی په منځ ستاسې کې (په فساد سره) غواړي دوی په تاسې کې اختلاف او په (لښکر) ستاسې کې جاسوسان ددوی شته او الله تعالى ښه پوهه دی په ظالمانو باندې.

### تفسير:

دې آيت کې هم د منافقانو څلور صفات ذکر شو:
اول صفت: که دوی ووځي نو هلته نقصان او فساد کوي.
دويم: اختلاف اچوي په مابين د مهاجرينو او انصارو کې.
دريم: دا منافقان د کفارو لپاره جاسوسي کوي.
څلورم: ظالمان دي. د شريعت حدودو څخه تجاوز کوي.
نو دا صفات پدې خلکو کې موجود دي، ځکه الله تعالى مخکې وفرمايل (کره الله انبعاثهم) ددوی وتل ځکه رب بد ګڼي.
نو چې ددې صفاتو والا کسان تاسې سره غزا ته هم لاړ شي نو تاسې ته به تاوان زيات درکوي که ګټه ؟ خامخا تاوان يې زيات دی نو ځکه الله تعالى فرمايي چې دوی دلته خه دي. خو فقط لږ راټينګ شوي وی چې ټولو خلکو ته ښکاره شوي وی او ساده مسلمانانو ته هم خبره واضحه شوی وی، هغه مسلمانانو ته چې ددوی دومره خباثتونو باوجود هم پرې دوکه کيږي، او وايي رب به يې ښه کړي، دومره بد خلک ندي!

### [مَا زَادُوكُمْ إِلَّا خَبَالًا]:

وَالْخَبَالُ: فساد، چغلي، اختلاف اچونې او ارجاف يعني ددروغو خبرونو خپرولو ته وايي.

### [وَلَأَوْضَعُوا خِلَالَكُمْ يَبْغُونَكُمُ الْفِتْنَةَ]:

حافظ ابن کثير وايي:
وَلَأَسْرَعُوا السَّيْرَ وَالْمَشْيَ بَيْنَكُمْ بِالنَّمِيمَةِ وَالْبَغْضَاءِ وَالْفِتْنَةِ.
خامخا دوی به ستاسې ترمنځ چغلۍ، بغض او فتنې اچونې لپاره منډې وهلې او ګرځيدلی.
ددې منافقانو يو لوی خصلت الله عزوجل ذکر کړی. منډې رامنډې ډيرې وهي، کله يو خوا ته ورځي، وسوسې اچوي، او کله بل خواته ورځي، وسوسې اچوي. لکه ددغه منافقانو او مرجفينو خلکو عادت وي. اول نه چې کار شروع کوي، نو مجالسو کې غلطې خبرې کوي، د نظام خلاف خبرې، د قوميت خبرې، مسؤولينو باندې بې ځايه انتقادونه، خيالي نقشې جوړول، چې دا کار داسې پکار دی او دا داسې پکار دی، چې تنبيه ورته ورکړل شي وايي زه خو د اصلاح په نيت دا خبرې کوم، ولې دا اصلاح به مونږ نه کوو ؟ نو ګوره لار يې کومه اختيار کړې ده او رنګ ورته څه ورکوي. بيا دې خبرې ته زور ورکوي چې دلته خلاف شريعت کارونه روان دي، او څوک چې اصلاح کوي، هغه ته تنبيه ورکول کيږي، هغه رټل کيږي، بيا همدغه دليل ونيسي، ځان خفه کړي، او جهادي کارونو څخه وروسته شي، سنګر ته نه ځي، جنګ ته نه ځي، خه عذر يې پيدا کړی وي چې زما حقې خبرې څوک نه اوري، په قرار قرار آخر ځان دې ته جوړوي چې دې صف نه خپې سپکې کړي، چې کله پدې بريالې شي نو بيا هلته پروپاګنډ ته زور ورکړي، دا ټيلي ګرامو او فيس بکو باندې لګيا وي، چې مجاهدينو کې دا خطايي ده او دا خطايي ده، او دغه طريقې سره خلک د جهاد نه کينوي، په مسؤولينو يې بدګمانه کوي، او آخري نتيجه يې دا راوځي چې کفري نظام ته تسليم شي او بيا د کفارو سره په ملګرتوب د اسلامي نظام او مجاهدينو خلاف دسيسې جوړوی. نو مجاهدينو ورونو دغه خلکو نه ځان لرې وساتئ، کوم کس چې تشې خبرې کوی، او کار نه کوي نو پوهه شئ دا سړی غلط سړی دی. او انجام ورله وګورئ، خامخا يې رب العالمين په کفرونو، شرکونو او ذلتونو کې اخته کوي. والله المستعان.

### [وَفِيكُمْ سَمَّاعُونَ لَهُمْ]:

امام مُجَاهِد ، زَيْد بْن أَسْلَم او ابْن جَرِير وايي: {وَفِيكُمْ سَمَّاعُونَ لَهُمْ} أَيْ: عُيُونٌ يَسْمَعُونَ لَهُمُ الْأَخْبَارَ وَيَنْقُلُونَهَا إِلَيْهِمْ. ابن کثير.
تاسې کې د هغوی جاسوسان دي، هغوی لپاره اطلاعات جمع کوي او راپورنه ورکوي.
دا وګورئ نبي عليه السلام او صحابه وو صف کې جاسوسان وو، او دندې يې همدا وې، اختلاف اچول، پروپاګنډ کول، چغلۍ لپاره منډې رامنډې وهل، سنګر او معرکې ته نه تلل، سخته کې ددروغو عذرونه وړاندې کول، د مخلصو مجاهدينو پسې ټوقې کول، مجاهدينو پسې دروغ تړلو د وجې هغوی حوصلې کمزورې کول، اميرانو باندې بې ځايه تهمتونو له امله هغوی د مهمو کارونو څخه مصروفول او داسې نور چې مخکې به راشي ان شاء الله، نو نن چې جاسوس معلومول همدا صفات پکې وګوره، دغه کس به يا جاسوس وي او يا به غير شعوري د اسلام خلاف کار کوي، نو مومن په تنبيه ورکولو سره پوهيږي او جاسوس او مفسد انسان د بار بار تنبيه ورکولو باوجود هم د خپل عادت څخه نه ګرځي.
نو دا ددې دليل هم نشي ګرځيدای چې بعضې خلک د جهاد څخه پاتې کيدو لپآره بهانه جوړوي، چې غاړې ته کينه جهاد مه کوه، نا، بيا خو پکار دا ده چې صحابه هم غاړې ته کيناستلي وی. او دا اشاره هم ده، چې دا لږ کسان دي، ډير ندي، نو دغه لږو پټو جواسيسو د وجې جهاد ترک کول هم شيطاني وسوسه ده، او دا قانون دی جاسوس انسان رب العالمين خامخا شرمولی دی، اګر که څه وخت مهلت هم ورته ورکړي.
[پدې آيت کريمه کې د منافقانو مرضونه او د باطن خباثت خه په ډاګه شوی دی، دا هغه خلک دي چې مخکې يې هم ستا په خلاف مکرونه او چلونه جوړول، مخکې يې هم مسلمانانو کې تفرقه پيدا کولو کوشش کړی دی.]

### لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ وَقَلَّبُوا لَكَ الْأُمُورَ حَتَّى جَاءَ الْحَقُّ وَظَهَرَ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ كَارِهُونَ (48)

ژباړه: يقينا غوښتلې وه دوی فتنه مخکې ددې نه او جوړ کړي وو دوی ستا په خلاف ډير چلونه تر دې چې راغی حق او ښکاره شو دين د الله تعالى او دوی بد ګڼي.

### تفسير:

### [لَقَدِ ابْتَغَوُا الْفِتْنَةَ مِنْ قَبْلُ]:

ددوی د اختلاف اچونې دسيسې خو تاسې ته لا له پخوا څخه روښانه دي لکه احد کې ابن سلول خپل ۳۰۰ جنګيالي عين جنګ موقع کې ستانه کړل، بنو نضير يهوديان يې د قتل څخه وژغورل، بنو قريظه سره يې اړيکې وی، غزوه احزاب کې يې تيښته وکړه، او نورو مسلمانانو ته يې هم ويلې چې بس نوره کيسه ختمه شوه، ځان وباسئ، عائشه رضي الله عنها باندې تهمتونه ولګول، مهاجرينو او انصارو اختلافاتو ته يې لمن وهله، او آخر کې يې مسجد ضرار هم جوړ کړو.
نو دا مرضيان خو مخکې نه معلوم دي.

[وَقَلَّبُوا لَكَ الْأُمُورَ]:
علامه قاسمي وايي: دَبَّرُوا لَكَ الْحِيَلَ وَالْمَكَائِدَ. [تفسير القاسمي]
ستا پر خلاف د حيلو او مكرونو تدبيرونه جوړوي.
[پدې ايت كريمه كې هم د جهاد څخه وروسته پاتې كېدونكو منافقانو نور صفات ذكر كيږي]

وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ ائْذَنْ لِي وَلَا تَفْتِنِّي أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوا وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ (49)

ژباړه: او بعضې ددوی نه هغه څوك دي چې وايي اجازت راكړه ماته (د پاتې كيدو) او مه اچوه ما په فتنه كې، خبر شئ دوی په فتنه كې غورځيدلي دي او يقينا جهنم خامخا راګيرونكى دى كافرانو لره.

تفسير:
[وَمِنْهُمْ مَنْ يَقُولُ ائْذَنْ لِي وَلَا تَفْتِنِّي]:
اول صفت د منافقانو: جهاد څخه پاتې كيدو اجازت غواړي او بيا وايي چې دا اجازت راكړه، په فتنه كې مې مه اچوه، مه مې ګناهګاروه.
دويم صفت: د امير مخالفت كوي، هغه ورته يو امر كوي او دا ورته وايي چې نه زما د خوښې مطابق كار وكړه، يعني امير خپل تابع كول غواړي.
فتنې څخه مراد دلته ګناه كې اخته كول او هلاكت ده. ددې دوه تفسيرونه شوي:
اول: دې منافقانو نبي عليه السلام ته ويل چې دې سختې ګرمۍ كې ماته ددومره لرى سفر كولو حكم مه كوه ځكه زه به ستا امر ونه منمه او ګناه كې به اخته شم. او كچيرې لاړ شم نو دلته كورونه يواځې پاتې كيږي، بچيان به مې هلاك شي. دا تفسير ددې الفاظو سره زيات مناسبت لري.
دويم: د جد بن قيس په نوم يو منافق و، هغه دا بهانه جوړه كړه چې اى د الله رسوله! د روميانو ښځې زياتې خايسته دي نو كه زه تبوك غزا ته لاړم شايد چې ځان كنټرول نه كړای شم، لهذا ته ما معذور وګڼه او د پاتې كيدو اجازت راته راكړه. [المعجم الكبير ٢ / ٢٧٥، ح ٢١٥٤، أبو نعيم في المعرفة] چې سند كې يې اختلاف شته.

[أَلَا فِي الْفِتْنَةِ سَقَطُوا]:
دوی خو بهانې جوړوي چې مونږ فتنه كې پرې نه وځو خو حقيقت كې دوی په فتنه كې اخته دي. او في الفتنه جار مجرور يې د حصر لپاره مقدم كړي دي. تاسې خو منافقان ياست، نو د نفاق نه به هم لويه فتنه وي ؟ تاسې د رسول الله عليه السلام څخه وروسته پاتې كيږئ، ددې څخه به هم لويه فتنه چيرې وي ؟

[وَإِنَّ جَهَنَّمَ لَمُحِيطَةٌ بِالْكَافِرِينَ]:
دا داسې ظالمان وو، چې نبي عليه السلام تابعداري او جهاد تګ ته يې فتنه ويلې، ځكه پرې رب العالمين د كفر فتوه ولګوله.
دلته خو به ځان په حيلو باندې خلاص كړي، قيامت كې به څه كوي، چې جهنم څخه به نشي ويستل كيدای.
[دلته د منافقينو او مرجفينو نور قباحتونه ذكر كيږي چې ددوی پيژندنه د جهادونو او معركو په دور كې په آسانۍ سره كيږي]

إِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ وَإِنْ تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا أَمْرَنَا مِنْ قَبْلُ وَيَتَوَلَّوْا وَهُمْ فَرِحُونَ (50)

ژباړه: كه ورسيږي تاته خوشحالي نو خفه كوي دوی لره او كه ورسيږي تاته څه مصيبت نو وايي دوی يقينا مونږ عمل كړی دی په خپل تدبير باندې مخكې ددې نه، او وګرځي دوی (ستاسې نه) او حال دا دی چې دوی خوشحالي كوي.

تفسير:
دا منافقين او مرجفين د جهاد په موسم كې راښكاره كيږي، داسې بدبخته انسانان دي چې د اسلام او مجاهدينو په كاميابۍ خفه كيږي او په ضرر يې د خوشۍ احساس كوي، يا مجاهدين ساده ګان ګڼي او ځان هوښيار ګڼي، چې ګوره مونږ په څومره حكمت او بصيرت سره ځان خوندي كړو ؟ يعني د اسلام، عقيدې او منهج غم ورسره نشته خو د خپل نفس ساتنه يې هدف ده، هغه كه په هره لار وي.

[إِنْ تُصِبْكَ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ]:
الْحَسَنَةُ: الْغَنِيمَةُ وَالظَّفَرُ.
الحسنة څخه مراد غنيمت او بريا ده.

[وَإِنْ تُصِبْكَ مُصِيبَةٌ]:
الْمُصِيبَةُ: الْخَيْبَةُ وَالِانْهِزَامُ.
مصيبت څخه مراد شكست او تاوان (هدف ته نه رسيدل) دي.

[يَقُولُوا قَدْ أَخَذْنَا أَمْرَنَا مِنْ قَبْلُ]:
كله چې مسلمانانو ته تكليف ورسيږي نو دغه وخت به دا منافقان خپل سياست، تجربه او نقشه تشريح كوي او تفريعات به پرې پيل كړي. چې مونږ مخكې ويلې چې ګوره داسې كار مه كوئ، ددې نتيجه خه نده. نو آيا دا خبره ددوی د منلو ده چې جهاد مه كوئ، عمليات ودروئ. جوړه وكړئ، خبره وكړئ ولو كه د عقيدې او منهج په نقصان هم تمامه شي ؟ چې جنګ وي خامخا فتح او شكست، زخم، اسارت او شهادت به پكې وي.

[وَيَتَوَلَّوْا وَهُمْ فَرِحُونَ]:
داسې عجيب خلك دي د اسلام په شكست خوشحاليږي، د مسلمانانو په فتح خفه كيږي، ځكه چې مسلمانان غالبه شي خو د منافقانو او مرجفينو حيثيت ختميږي، خبرې يې دروغ ثابتيږي، نو بيا خفه كيږي. او چې مصيبت رسيږي، نو بيا وايي چې مونږ خو ويلې چې دا خلك په مشرۍ نه پوهيږي، په سياست نه پوهيږي، سرزوري كوي.
همدا اعتراضات په نبي عليه السلام هم شوي وو. او هدف ددې مرجفينو دا وي چې ساده مسلمانان لاس ته كړي.
[وس الله عزوجل نبي عليه السلام ته امر كوي چې دې منافقانو او مرجفينو ته جواب وركړه چې مونږ ته د جهاد په صف كې كوم څه رسيږي، دا الله عزوجل مونږ ته په تقدير كې ليكلي وو، خامخا به راته رارسيدل، او ستاسې ارجاف به زمونږ توكل كمزورى نه كړي]

قُلْ لَنْ يُصِيبَنَا إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَنَا هُوَ مَوْلَانَا وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ (51)

ژباړه: ته اووايه هيڅكله به ونه رسيږي مونږ ته مګر هغه څه چې الله تعالى مونږ لپاره مقرر كړيدي، هغه مولا زمونږ دی، او خاص په الله تعالى دې ځان وسپاري مومنان.

تفسير:
[قُلْ لَنْ يُصِيبَنَا إِلَّا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَنَا]:
دا مصيبتونه ليكل شوي او مقرر شوي دي:
اول: په لوح محفوظ كې. دويم: هغه كتاب كې چې پر مونږ نازل شوی.
او ددې جواب حاصل دا دی كله چې يو انسان پدې پوهه شي چې د الله عزوجل تقدير حتمي دی او هر خير او شر په تقدير كې ليكل شوی دی نو بيا پرې مصيبتونه اسانيږي.

[هُوَ مَوْلَانَا]:
نَاصِرُنَا، وَجَاعِلُ الْعَاقِبَةِ لَنَا، وَمُظْهِرُ دِينِهِ عَلَى جَمِيعِ الْأَدْيَانِ.
هغه زمونږ كومكي دی، او آخري انجام زمونږ په نفع ګرځونكى دی، او خپل دين په ټولو دينونو غالبونكى دی.

[وَعَلَى اللَّهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُونَ]:
وَالتَّوَكُّلُ عَلَى اللَّهِ: تَفْوِيضُ الْأُمُورِ إِلَيْهِ. په الله باندې توكل كولو معنا دا ده چې خپل ټول كارونه هغه ته سپارل.
دلته مراد دا دی چې تاسې توكل په الله وكړئ، په افرادو او اسبابو مه كوئ. چې دا منافقان درسره ونه وتل او ستاسې تعداد كم شو نو تاسې مه خفه كيږئ، يا اسباب درسره كم و نو تاسې په الله توكل وكړئ، هغه به ستاسې كومك كوي.
او همدا د ايمان تقاضا ده چې يواځې په الله تعالى توكل وشي.
[وس دې آيت كريمه كې منافقينو او مرجفينو ته دويم جواب دی]

قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَا إِلَّا إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ أَنْ يُصِيبَكُمُ اللَّهُ بِعَذَابٍ مِنْ عِنْدِهِ أَوْ بِأَيْدِينَا فَتَرَبَّصُوا إِنَّا مَعَكُمْ مُتَرَبِّصُونَ (52)

ژباړه: ته اووايه چې انتظار نه كوئ تاسې په باره زمونږ كې مګر يو د دوو خوشحاليو نه او مونږ انتظار كوو ستاسې په باره كې چې تاسې ته به الله تعالى خپل طرف نه عذاب ورسوي يا په لاسونو زمونږ، پس انتظار كوئ يقينا مونږ ستاسې سره انتظار كونكي يو.

تفسير:
[قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَا إِلَّا إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ]:
دويم جواب حاصل دا دی چې آيا تاسې زمونږ په اړه ددوه خوشحاليو څخه د يوې انتظار كوئ ؟ چې يا نصرت او يا شهادت دی. زمونږ په نزد خو دا دواړه ښكلې نتيجې دي.
حديث كې راځي:
عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ، قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " تَضَمَّنَ اللَّهُ لِمَنْ خَرَجَ فِي سَبِيلِهِ ، لَا يُخْرِجُهُ إِلَّا جِهَادًا فِي سَبِيلِي وَإِيمَانًا بِي وَتَصْدِيقًا بِرُسُلِي ، فَهُوَ عَلَيَّ ضَامِنٌ أَنْ أُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ أَوْ أَرْجِعَهُ إِلَى مَسْكَنِهِ الَّذِي خَرَجَ مِنْهُ نَائِلًا ، مَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ أَوْ غَنِيمَةٍ. [صحيح مسلم]
ژباړه: رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: الله رب العالمين د هغه چا په اړه په ځان دا لازمه كړې چې څوك په الله ايمان ولري، د رسولانو تصديق وكړي او د جهاد په نيت سره ووځي نو زه به دا جنت ته خامخا داخلوم او يا به يې خپل كور ته راګرځوم، سره د اجر او يا سره د غنيمت.
او [هل] استفهامي دلته د تقريع،

توبيخ او زورنې لپاره راغلې دی.
[وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ أَنْ يُصِيبَكُمُ اللَّهُ بِعَذَابٍ مِنْ عِنْدِهِ أَوْ بِأَيْدِينَا]:
دا جمله د ماقبل مومنانو د عاقبت مقابل کې ده، هلته مومنانو لپآره دوه خوشحالۍ او دوه خايسته نتيجې وې، نو دلته د منافقانو او مرجفينو لپآره دوه بدې پايلې دي، يو دا چې د الله عزوجل لخوا د عذاب راتلل دي. او يا د مجاهدينو په لاس اسيرانيدل، وژل کيدل او ذليله کيدل دي.

## [فَتَرَبَّصُوا]:

او دلته دا فاء فصيحه ده او دا امر د تهديد لپاره دی، الله عزوجل دې خلکو ته وعيد ورکوي. پښتو کې خلک وايي ګورو به، هغه شان تهديد ورته بيان شوی. معاذ الله.
[دې ايت کريمه کې هم د منافقانو دوه نور بد صفات ذکر کيږي]

## قُلْ أَنْفِقُوا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا لَنْ يُتَقَبَّلَ مِنْكُمْ إِنَّكُمْ كُنْتُمْ قَوْمًا فَاسِقِينَ (53)

ژباړه: ته اووايه خرچه کوئ په خوښه يا په ناخوښه، هيڅ کله به قبول نه کړی شي ستاسې څخه، يقينا تاسې نافرمانه قوم ياست.

## تفسير:
## [قُلْ أَنْفِقُوا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا لَنْ يُتَقَبَّلَ مِنْكُمْ]:

امام ابْنُ جَرِيرٍ د ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما څخه ددې آيت شان نزول ذکر کړی، چې دا د جد بن قيس په اړه نازل شوی، مخکې د المعجم الكبير للطبراني حديث تير شو: إِنِّي إِذَا رَأَيْتُ النِّسَاءَ لَمْ أَصْبِرْ حَتَّى أَفْتَتِنَ، وَلَكِنْ أُعِينُكَ بِمَالِي، قَالَ: فَفِيهِ نَزَلَتْ قُلْ أَنْفِقُوا طَوْعاً أَوْ كَرْهاً الْآيَةَ.
يقينا زه چې زنانه ووينم نو صبر نشم کولای او فتنه کې غورځيږم، خو زه به په خپل مال سره ستا مرسته وکړم، وايي د هغه په اړه دا آيت نازل شو.
يا خو دا خبر دی، الله عزوجل ورته خبر ورکوي کچيرې تاسې په خوښه يا په ناخوښۍ خرچه کوئ نو له تاسې څخه هيڅکله هم نشي قبليدای. يا دا هم ويل شوي چې دا امر دی په معنا د خبر دی.
او دا واضحه ده چې کفر او نفاق موجود وي نو صدقه يې چېرته قبليږي ؟

## [إِنَّكُمْ كُنْتُمْ قَوْمًا فَاسِقِينَ]:

وَالْفِسْقُ: التَّمَرُّدُ وَالْعُتُوُّ. فسق سرکشي او حد څخه تجاوز ته وايي.
او دلته ترې مراد فسق أكبر دی.
[وس الله عزوجل ددې منافقانو د صدقاتو نه قبليدو علت وضاحت سره ذکر کوي]
وَمَا مَنَعَهُمْ أَنْ تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقَاتُهُمْ إِلَّا أَنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَبِرَسُولِهِ وَلَا يَأْتُونَ الصَّلَاةَ إِلَّا وَهُمْ كُسَالَى وَلَا يُنْفِقُونَ إِلَّا وَهُمْ كَارِهُونَ (54)
ژباړه: او نه دي منع کړي دوی چې قبول کړی شي ددوی نه صدقې ددوی مګر دې خبرې چې دوی کفر کړی دی په الله تعالی او په رسول د هغه او نه راځي دوی مانځه ته مګر په داسې حال چې ناراسته وي او نه مصرفوي دوی مګر په داسې حال کې چې بد يې ګڼي.

## تفسير:
## [وَمَا مَنَعَهُمْ أَنْ تُقْبَلَ مِنْهُمْ نَفَقَاتُهُمْ إِلَّا أَنَّهُمْ كَفَرُوا بِاللَّهِ وَبِرَسُولِهِ]:

درې علتونه د عدم قبوليت بيان شو، چې دا درې د منافقانو قبيح صفات هم دي.
اول صفت: کفر دی.
دا منافقان کفار دي. او شرک په صورت کې بل هيڅ عمل نه قبليږ ي.

## [وَلَا يَأْتُونَ الصَّلَاةَ إِلَّا وَهُمْ كُسَالَى]:

دويم صفت: دوی مونځ نه کوي، مګر په سستۍ او بوج ګڼلو سره مونځ کوي. دا ځکه چې دوی ددې مونځ د ثواب اميد نه ساتي، او نه هم د مونځ پريښودو د عذاب څخه ډاريږي. ددوی د مونځ حاصل يواځې خلکو ته ښودنه ده چې مونږ مسلمانان يو، دې لپاره چې څټونه راته ونه وهي.
[وَإِذَا قَامُوا إِلَى الصَّلاةِ قَامُوا كُسَالَى يُرَاءُونَ النَّاسَ وَلا يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلا قَلِيلا} [النِّسَاءِ: 142]
او کله چې دوی مونځ ته ودريږي نو سست ودريږي، ځان ښودنه کوي خلکو ته، او الله عزوجل نه يادوي مګر لږ.
نو دا د منافق صفت دی چې مونځ کې سست پست ولاړ وي، داسې نشاط، تازه او توجه سره نه وي ولاړ.
مسلمانانو ورونو!
دا وګورئ، مونځ دومره مهم عبادت دی چې صدقه او جهاد باندې هم خورا زيات تاثير لري.

## [وَلَا يُنْفِقُونَ إِلَّا وَهُمْ كَارِهُونَ]:

دريم صفت: د الله په لار کې چې کومه خرچه کوي نو دا د زړه له کومې نه کوي بلکې بد يې ګڼي. ځکه چې ددوی دا عقيده ده چې دا مال خو زمونږ څخه ضايع شو. د انفاق د اجرونو څخه نااميده دي.
چې صدقه يې نه قبليږي نو مونځ روژه يې هم نه قبليږي. معاذ الله.



# نثر اللؤلؤ والمرجان

## في سلسلة معرفة الرحيم الرحمان

### شپږم درس

أحمد الله وأسبّحه بعلوّه وكماله الذي خلق السموات والأرض على مِنواله ونُوِّرَت بنوره وزُيِّنَتْ بجماله ثم استوى على العرش لائقا بذاته وجلاله ولا يخفى عليه شيئ من أمور العالم وأفعاله وعليم بجميع أحواله وأعلن الفوز لمن امتثل بإنزاله وإرساله وأصلي وأسلّم على رسوله ونبيه محمد وعلى أهل بيته وأصحابه وآله، أمابعد:

محترمو مسلمانو ورورنو او خويندو!

مخکې د عقيدې په ذکر شوي بحث کې مونږ د لوی الله په توفيق سره د الله تبارک وتعالی د ذات په اعتبار سره په مطلق علو باندې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د احاديثو نه دلايل ذکر کړل، اوس په دې شپږم درس کې په مذکوره دعوې د رسول الله صلی الله عليه وسلم د صحابه کرامو او تابعين عظامو اقوال ذکر کوو.

#### دفع القلق والمهابة بإثبات هذه العقيدة عن خير البرية الصحابة

مخکې فصل کې تاسو د قران نه بعد د احاديثو نه هم د دې عقيدې اثبات ملاحظه کړ چې الله رب کريم د ذات په اعتبار سره بره فوق سبع سماوات دی، اوس د کتاب او سنت څخه د دې ثابت عقيدې دغه اعتقاد د رسول الله صلی الله عليه وسلم د صحابه کرامو رضوان الله عليهم اجمعين څخه هم واورئ.

(۱) ابوبکر الصديق رضی الله عنه کله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفات شو او صحابه کرام د يو لوی غم او مصيبت سره دچار شول نو ابوبکر رضی الله عنه د عمر رضی الله عنه د خطبې په مقابل کې خطبه کوي او فرمايي:

من كان يعبد محمدا فإنه قد مات، ومن كان يعبد الذي في السماء فإنه حي لا يموت"

ژباړه: چا چې د محمد عبادت کاوه نو يقينا هغه وفات شو، او چا چې د هغه چا عبادت کاوه چې هغه په اسمان کې دی، نو بې شکه هغه ژوندی دی مرګ پرې نه راځي.

أخرجه الدارمي في الرد على المريسي ص٤٦٣ -ضمن عقائد السلف او ابن قدامة په إثبات صفة العلو ص١٠١ ــــ١٠٢ أو علامه ذهبي په العلو ص٦٢.أو ابن القيم رحمه الله په اجتماع الجيوش الإسلامية ص ١١٩ کې ذکر کړی دی.

(۲) عمر بن الخطاب رضی الله عنه د ده رضی الله عنه نه هم تقريباً ډيرو تفسيرونو دغه واقعه نقل کړي، چې عمر رضی الله عنه کله يوې زنانه په لار کې ودرولو او خبرې يې ورسره کولې نو د ده له ملګرو نه يو کس هغه ته وفرمايل "يا أمير المؤمنين حبست الناس على هذه العجوز"

ژباړه: ای امير المومنين ته د دې بوډۍ په وجه د نورو خلکو د ملاقات نه حصار شوې فقال: نو عمر رضی الله عنه ورته وفرمايل "ويلك أتدري ما هي؟

ژباړه: های هلاک شي ته خبر يې دا څوک ده؟ "هذه امرأة سمع الله شكواها من فوق سبع سموات"

دا خو هغه ښځه ده چې شکايت يې الله تبارک وتعالی د اوو اسمانونو نه بره اوريدلی وو. هذه خولة التي أنزل الله فيها دا خوله ده هغه خوله چې الله تبارک وتعالی يې په شان کې دغه کلام نازل کړی چې فرمايي:

{قد سمع الله قول التي تجادلك في زوجها} وګوره العرش للذهبی ۲/۱٦۳ اوالرد على الجهمية ص۲۷۴ دامام دارمی اوبيهقی رحمه الله هم په الأسماء والصفات ۲/۳۲۲ رقم الأثر ۸۸٦ باندې ذکر کړی دی.

(۳) عثمان بن عفان رضی الله عنه عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه فرمايي: چې کله ما د عثمان رضی الله عنه لپاره بيعت واخيسته او خلکو هم ورسره بيعتونه وکړل نو فرمايي چې: رفع رأسه إلى سقف المسجد وقال: "اللهم اشهد"

نو عثمان رضی الله عنه سر د مسجد د چت (مراد ترينه بره اسمان طرف سر اوچتول دي) طرف اوچت کړ، او ويې فرمايل: ای الله ته ګواه اوسه.

وګوره العرش للذهبی ۲/۱٦۴ العلو لذهبی ص٦۳ ابن خزيمه فی التوحيد ۱/۲۴۲ الأسماء والصفات للبيهقی ۲/۲۴۲

(۴) عبدالله بن مسعود رضی الله عنه د ابن مسعود رضی الله عنه نه روايت کړی دی فرمايي:

چې څوک سبحان الله، والحمدلله، والله أكبر، ووايي "نو تلقاهن ملك فعرج بهن إلى الله تعالى" نو يوه ملايکه يې واخلي او دغه کلمات د الله طرف ته پورته کوي.

فلا يمر بملأ من الملائكة إلا استغفروا لقائلهن، حتى يجيء بهن وجه الرحمن"

نو دوی په يوه ډله د ملائکو نه ورتيريږي مګر دا چې هغوی د دې ويوونکي ته مغفرت غواړي، تر دې چې دغه کلمات دا ملايکه د رحمان ذات مخې ته ورسوي، امام ذهبی رحمه الله دغه اثر نقل کوي او فرمايي: أخرجه العسال وإسناده كلهم ثقات وګوره العرش ۲/۱٦۵ دغه ډول دا اثر ابن القيم په اجتماع الجيوش الاسلاميه ص ۲۵۲ کی هم ذکر کړی او فرمايلي يې دي اخرجه العسال باسناد کلهم ثقات.

(۵) عبدالله بن عباس رضي الله عنهما دی ده به فرمايل:

فكروا في كل شيء ولا تفكروا في ذات الله، فإن بين السموات إلى كرسيه سبعة آلاف نور، وهو فوق ذلك سبحانه وتعالى"

ژباړه: په هر څه کې د کيفيت متعلق فکر کوئ خو د الله په ذات کې دغه فکر مه کوئ ځکه د اسمانونو او د هغه د کرسۍ تر منځه اوه ۷ زره د نور پردې دي، او الله تعالی د هغې نه هم بره دی. العرش للذهبی ۲/۱۷۱ الترغيب والترهيب للأصبهانی ۲/۱۷۳ اثبات صفة العلو لابن القدامة ص١٠٦ ــــ١٠٧

#### توفيق المعبود بذكر الخلاصة و المقصود

محترمو لوستونکو!

دلته د دې صحابه کرامو د دې اثارو نه ښکاره معلومه شوه چې دوی هم الله تبارک وتعالی په فوقية بالذات باندې قائل وو، او همدا اعتقاد د کتاب او سنت څخه ماخوذ او ثابت اعتقاد دی، کوم چې مخکې تاسو ملاحظه کړو، نو د کتاب او سنت او د صحابه وو د اقوالو نه معلومه شوه چی الله تبارک وتعالی د اسمانونو نه بره دی.

دې باب کې به د صحابه کرامو نور اقوال د عرش د اثبات په باب کې ذکر شي، ان شاء الله تعالی.

نو د کتاب او سنت نه د دغې ثابت او سپيڅلې عقيدې دغه جازم اعتقاد چې څنګه تاسو د صحابه کرامو رضوان الله عليهم څخه بالدلائل ملاحظه کړ اوس راشئ او دې لاندې را روان فصل کې دغه اعتقاد لږ د صحابه وو د شاګردانو تابعينو رحمهم الله څخه هم واورئ.

#### دفع المكر والمكيدة بذكرالشواهدعن التابعين باثبات هذه العقيدة

نو راځو او په توفيق د لوی الله تبارک وتعالی د اهل زيغو هغه مکر او کيد هم دفع کوو چې هغوی د الله تعالی متعلق د فوقيت عقيده تجسيم

ګڼي او منونکو ته يې مجسمه او دغه ډول قسم قسم بې کاره القاب ورکوي، او دغه عقيده د سلفو څخه نفي کوي. نو اوس د يو څو تابعينو هغه اقوال ذکر کوو چې هغه دليل وي په دې چې د دوی عقيده هم د الله تبارک وتعالی په باره کې د فوقيت متعلق د قران حديث او صحابه کرامو غوندې وه.

(۱) کعب الاحبار رحمه الله چې ده د ابوبکر رضی الله عنه په خلافت کې اسلام راوړی او د عثمان رضی الله عنه په خلافت کې وفات شوی چې عمر يې تقريباً د سل کالو څخه اوختې وو، کما فی الکاشف ص ۳/۹ وتقريب التهذيب ص۸۱۲ دغه جليل القدر تابعی فرمايی قال الله في التوراة: أنا الله فوق عبادي،......... الله تعالی په تورات کې فرمايلي: زه الله يم د خپلو بنده ګانو نه بره يم ...... العرش للذهبی ۲/۱۸۷ وأخرجه ابن بطة فی الابانة ۳/۱۸۵ و الجيلانی فی الغنية۱/۵۷

(۲) حسن بصری رحمه الله چې دا هم جليل القدر تابعي او د بصرې اوسيدونکی دی له ده څخه په ثابت سند سره نقل دي چې ده وفرمايل: سمع يونس عليه السلام تسبيح الحصا والحيتان، فجعل يسبح، وكان يقول في دعائه: سيدي في السماء مسكنك، وفي الأرض قدرتك" وذکر الحديث يونس عليه السلام په بحر کې د کاڼو او ګيټکيو تسبيحات واوريدل نو شروع شو چې تسبيح يې ويل او په دعاء کې يې ويل: چې ای زما هغه باداره چې ځای د اوسيدو دی په اسمان کې دی، او قدرت دی په ځمکه کې دی ...... صفة العلو لابن القدامة ص ۹۶ رقم الاثر۵۹ العرش للذهبی ۲/۱۸۹ ياد دي وي چې د سماء نه مراد علو او اوچت والی دی کما مر فيفصل سطر النقاط بحل شبهة النفاة.

(۳) مسروق بن الأجدع الهمدانی رحمه الله چې دا هم د ډېرو صحابه کرامو شاګرد دی، د ده متعلق صحيح نقل دی چې ده به کله هم له عائشې مور څخه حديث ذکر کولو نو فرمايل به يې حدثتني الصديقة بنت الصديق حبيبة حبيب الله، المبرأة من فوق سبع سموات"

ماته ريشتوني زنانه د ريشتوني سړي لور او د الله د دوست (رسول الله صلی الله عليه وسلم) محبوبې هغې زنانه چې پاکې يې پاس د اوو۷ اسمانونو نه راغلې ده (هغې راته) دا حديث بيان کړی دی العرش للذهبی ۲/۱۹۱ طبقات ابن سعد۸/۶۶ والشريعة للآجری ۵/۲۴۰۴ والحلية لأبی نعيم ۲/۴۴

(۴). امام مفسر مجاهد رحمه الله چې دا د عبدالله بن عباس رضی الله عنهما مشهور شاګرد او جليل القدر امام او تابعي دی، موصوف د الله تبارک وتعالی د دې وينا متعلق چې { فخلف من بعدهم خلف} تفسير کوي او فرمايي: هم في هذه الأمة يتراكبون كما تراكب الحمر والأنعام في الطرق، ولا يستحيون الناس في الأرض، ولا يخافون الله في السماء"

ژباړه: دا به په دې أمت کې (داسې خلک) وي چې يو په بل به داسې ځوريږي لکه څنګه چې په لارو کې خرونه او نور څاروي يو په بل ځوريږي نه به دوی ځمکه کې د انسانانو نه حياء (شرم) کوي او نه به (د هغه) الله نه ويريږي چې په اسمان کې دی. وګوره تفسير مجاهد ص۲۵۶ تفسير الطبری ۱۶/۷۵ واجتماع الجيوش الاسلامية ص۲۵۷ والعرش للذهبی ۲/۱۹۶

(۵) سعيد بن جبير رحمه الله چې دا هم مشهور تابعي دی، د ده نه هم په سند سره نقل دي چې فرمايي: د بني اسرائيلو د بادشاهانو څخه د يو بادشاه په زمانه کې څو کلونه قحط سالي راغله نو بادشاه وويل چې يا به الله په مونږ باران کوي او يا به موږ الله ته تکليف ورسوؤ، نو په مشاورينو کې ورته چا وويل ته به څنګه په دې قدرت وومې حال دا چې هغه (الله) په اسمان کې دی نو بادشاه وويل: زه به د الله دوستان قتل کړم، نو په دې (خبرې) سره الله باران وورواوه. وګوره العرش للذهبي ۲/۱۹۷ ابونعيم فی الحلية ۴/۲۸۲ اثبات صفة العلو لابن قدامه ص۹۷

(۶) سليمان بن طرخان التيمی البصری رحمه الله به فرمايل: لو سئلت أين الله؟ لقلت في السماء.

که چيرته له ما پوښتنه وشي چې الله چيرته دی، نو زه به ورته حتماً ووايم چې الله په اسمان کې دی. خلق افعال العباد للبخاری ص۱۱ اثبات صفة العلو لابن قدامة ۱۱۴

(۷) عبيد بن عمير الليثي رحمه الله هم يو له هغو امامانو څخه دی چې په توثيق يې اجماع ده.

کما فی الکاشف ۲/۲۰۹ موصوف فرمايي: ينزل الرب عز وجل شطر الليل إلى السماء الدنيا فيقول: من يسألني فأعطيه، من يستغفرني فأغفر له، حتى إذا كان الفجر صعد الرب عز وجل. ژباړه: زمونږ رب عزّوجل نيمه شپه د دنيا اسمان ته راکوزيږي او فرمايي: څوک دی چې له مانه څه وغواړي او زه يې ورکړم څوک دی چې له مانه مغفرت وغواړي او زه ورته ببښنه وکړم تر دې چې سحر شي نو بيا زمونږ رب بره خيږي، وګوره السنة لعبدالله بن احمد ۱/۲۷۲ اجتماع الجيوش الاسلاميه لابن القيم ص ۲۵۹ العلو للذهبي ص۹۳ والعرش له ۲/۲۰۵

(۸) بل د مکي مشهور قاري عمر بن عبدالرحمان بن محيصن المکی رحمه الله چې د مسلم ترمذي او نسايي له راويانو څخه دی، ده به د "وفي السماء رزقكم وماتوعدون" قراءت داسې کولو: وفي السماء رازقكم وما توعدون. ژباړه: په اسمان کې ستاسو رازق (روزي درکوونکی) دی او هغه څه هم چې وعده يې له تاسو سره کيږي، وګوره العرش للذهبی ۲/۲۱۵ کتاب اتحاف فضلاء البشر....۲/۴۹۲

(۹) ايوب بن ابي تميمة کيسان السختياني چې دا هم يو لوی ثقه ثبت محدث او دصحاحو راوي دی، چې د لويو فقهاو او عبّادو څخه دی، حماد بن زيد فرمايي: چې ما له ده څخه واوريدل چې د معتزله وو متعلق يې وفرمايل: إنما مدار القوم على أن يقولوا ليس في السماء شيء.

ژباړه: بې شکه عقيده د دې قوم دا ده چې دوی وايي چې په اسمان کې هيڅ هم نه شته، وګوره العرش للذهبی ۲/۲۱۸ او همدا اثر يې په خپل کتاب العلو ص۹۸ کې هم نقل کړی او متعلق يې فرمايلي: هذا إسناد كالشمس وضوحا، والاسطوانة ثبوتا عن سيد أهل البصرة وعالمهم:

دا سند د بصرې د سردار او عالم لکه د لمر په شان داسې روښان او واضح دی او د ستنې(پايې) غوندې مضبوط ثبوت لري او دغه اثر يې په سيراعلام ۶/۲۴ کې هم نقل کړی دی.

(۱۰) ثابت بن اسلم البناني رحمه الله چې دا هم د جليل القدر تابعينو څخه دی دا فرمايي : داود عليه السلام به ډېر اوږد لمونځ (قيام) کولو بيا به يې رکوع وکړه بيا به يې سر اوچت کړ اسمان طرف ته او ويل به يې: إليك رفعت رأسي يا عامر السماء نظر العبيد إلى أربابها يا ساكن السماء" ژباړه: ستا طرف ته مې سر را اوچت کړی ای د اسمان ابادونکيه! داسې درته ګورم (اميد لرم) لکه څنګه چې غلامان خپلو بادارانو ته اميد لري، ای د اسمان اوسيدونکيه! دا اثر اللالکائي په شرح أصول اعتقاد أهل السنة والجماعة ۳/۴۰۰ رقم الأثر۶۶۹ باندې ذکر کړی او امام أحمد رحمه الله په الزهد ص۱۱۱ او ابن قدامة په إثبات صفة العلو ص ۹۵ ــ۹۶ کې په رقم ۵۸ أو ذهبي په العلو ص۵۵ ۱وص۹۶ کې هم ذکر کړی او د هغې نه بغير يې په الأربعين في صفات رب العالمين کې هم ص۵۸ کې په رقم ۳۷ ذکر کړی .أو ابن القيم رحمه الله دغه اثر په اجتماع الجيوش الإسلامية ص۲۶۸ کې هم ذکر کړی تلک عشرة کاملة

## توفيق المعبود فی ذکر الخلاصة و المقصود

دلته په پورته ذکر شوي فصل کې د جليل القدر او معظمو تابعينو رحمهم الله څخه مو تاسو ته يو څو هغه أقوال نقل کړل چې د هغې نه ښه صفا بلا تردد والتأويل دا معلوميږي چې د الله تبارک وتعالی د فوقيت بالذات په اثبات کې د هغوی هم دغه عقيده وه کومه چې ذکر شوه، چې خلاصه او مقصود د دې بحث څخه هغه دا ثابتول دي چې دغه تابعينو چې د بې شماره صحابه کرامو سره يې صحبتونه او مجلسونه شوي او د هغوی څخه يې مخامخ رؤيةً او مشافهةً د دين عقيدې او شرعي احکامو اخذ کړی دی دوی هم د کتاب او سنت موافق د صحابه کرامو غوندې دغه عقيده لرله چې الله تبارک وتعالی د ذات په اعتبار سره بره دی او هيڅ انسان په صحيح سند سره دا نه شي ثابتولی چې له تابعينو څخه يو هم د دې عقيدې نه انکار کړی وي او يا يې هم په هغې کې تاويل او تحريف کړی وی کما فی الحموية الکبری لابن تيمية الحرّانی ص ۲۲۰ او همدا د قران سنت او اجماع د امت نه ثابته هغه عقيده ده چې په دې کې به شک تردد انکار او يا هم تأويل او تحريف د اهل الزيغ عمل ګڼل کيږي او له دې نه ناخبره او جاهل به په خپل رب خالق او معبود باندې جاهل او د هغه نه ناخبره وي، والعياذ بالله تعالی

## الغاية المرسومة بنقل اجماع فوقية الله عن علماء الأمة المرحومة

مخکې فصلونو کې مونږ بتوفيق الله تعالی د قران او حديث نه واخله تر تابعينو دا خبره ثابته کړه چې الله تبارک وتعالی د ذات په اعتبار سره د اوو ۷ اسمانو د پاڅه دی او همدا د امة د اوائلو نه نقل شوي ثابت جازم او راسخ هغه اعتقاد دی چې يو مخالف يې هم په لاس کې دليل نه لري شيخ الاسلام ابن تيمية رحمه الله د دې متعلق فرمايي: ثم ليس في كتاب الله، ولا في سنة رسول صلى الله عليه وسلم، ولا عن أحد من سلف الأمة لا من الصحابة والتابعين، ولا عن أئمة الدين ــ الذين أدركوا زمن الأهواء والاختلاف ــ حرف واحد يخالف ذلك، لا نصا ولا ظاهرا.

ولم يقل أحد منهم قط: إن الله ليس في السماء، (ژباړه) نو نشته نه د الله په کتاب او نه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په سنت کې او نه د يو کس نه په سلفو د امت کې چې صحابه دې او بيا تابعين او د دين امامان دي، کومو چې د خواهشاتو او



اختلافاتـو ادوار مونـدلي پـه دوی کـې لـه يـو ځـخـه يـو حـرف هـم داسـې څـوک نـه شي ثابتولـی چـې هغـه د دې (عقيـدې) خـلاف وي نـه د نـص او نـه د ظاهـر پـه طريقـې سره او نـه بلـکل يـو کـس پـه دوی کـې دا ويـلي، چـې اللـه پـه اسـمان کـې (بـره ـ پـاس) نشـته دی، وګـوره: الحمويـه الکـبری ص(۲۲۰ ) نـو پـه دې مناسـبت سره اوس دې فصـل کـې بـاذن اللـه تعالـی د امـة مرحومـه د جيـدو او معتمـدو علـماوو او فقهـاو ځـخـه دا ذکـر کـوو چـې هغـوی هـم دغـه اعتقـاد خپلـه عقيـده ګرځولـی، اګر چـې د اجـماع نظـر او عقيـده ده، کـمافي الاعتقـاد للالـکائي ۱/۱۹ والعـرش لابـن ابي شـيبة ص۱۳۸ وصفـة العلـو لابـن قدامـة ص ۶۳

نـو چونکـې عقيـده اجماعـي عقيـده ده، نـو د ټولـو علـماوو اقـوال او يـا هـم د هغـوی نومونـه ذکـر کـول زمونـږ د وس او طاقـت نـه لانـدې نـه دي، امـا دومـره ده چـې پـه اختصـار سره بـه د هغـو لـه جملـې ځـخـه چـې د اللـه تبـارک وتعالـی بـاره کـې د فوقيـة بالـذات عقيـده لـري، د يـو څـو هغـو علـماوو نومونـه ذکـر کـړو، کـوم چـې د عامـو بـې علمـه مسـلمانانو تـر منځـه هـم ډيـر مشـهور دي، فضـلا عـن العلـماء او هغـه پـه لانـدې ډول دي.

(۱) امـام ابـو حنيفـه رحمـه اللـه المتوفی هـ ۱۵۰ وګـوره العلـو للذهبـی ص ۱۰۱ واثبـات صفـة العلـو لابـن قدامـة ص ۱۷۰ والفقـه الاکـبرص ۱۷۳

(۲)امـام مالـک رحمـه اللـه المتوفـی هـ۱۷۹ وګـوره الشريعـة للآجـری ص۲۸۹ وکتـاب السـنة لإبـن احمـد بـن حنبـل ۱/۱۰۷ والعلـو لذهبـي ص۱۳۸ واجتـماع الجيـوش ۲/۱۴۱

(۳)امـام شـافعی رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۰۴ وګـوره اجتـماع الجيـوش ۲/۱۶۵ او دده خپـل کتـاب مسـند الامـام الشـافعی

(۴)امـام احمـد بـن حنبـل رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۴۱ وګـوره اثبـات صفـة العلـوء ص۱۶۷ او الـرد عـلی الجهميـة ص۱۴۶،۱۴۷ العقيـده ص۱۰۸ روايـة ابـی بکرالخـلال لـه

(۵) امـام بخـاري رحمـه اللـه المتوفی هـ۲۵۴وګـوره صحيـح البخـاري کتـاب التوحيـد و خلـق أفعـال العبـاد ص ۴۲،۴۳

(۶) امـام اوزاعـی رحمـه اللـه المتوفی هـ۱۵۷ وګـوره اجتـماع الجيـوش لابـن القيـم ۲/۱۳۵

(۷)امـام محمـد بـن حسـن الشـيباني رحمـه اللـه صاحـب ابـی حنيفـة رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۱۸۹ وګـوره اثبـات صفـة العلـو لابـن قدامـة ص۱۷۰ وشرح اعتقـاد.... للالکائـی ۲/۴۳۳ والعلـوء لذهبـی ص۱۱۳

(۸) امـام بـن خُزيمـه رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۳۱۱وګـوره اثبـات صفـة العلـو ص ۱۸۵ و معرفـة علـوم الحديـث ص ۸۴ اجتـماع الجيـوش ۲/۱۹۳

(۹) امـام ابوبکـر الآجـري البغـدادي رحمـه اللـه المتـوفي ۳۶۰ وګـوره الشريعـة لـه ۳/۱۱۰۰

(۱۰) امـام ذهبـي رحمـه اللـه المتوفـی ۷۴۸ وګـوره د ده خپـل کتابونـه العـرش او العلـو او الأربعيـن چـې د اللـه تبـارک وتعالـی د همـدې او نـورو صفاتـو پـه اثبـات کـې يـې ليـکلي دي .

(۱۱) شـيخ الاسـلام ابـن تيميـه الحـراني رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۷۲۸ وګـوره دده کتابونـه التدمريـه الحمويـة تلبيـس الجهميـه مجمـوع الفتـاوی

(۱۲) ابـن قدامـه رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۶۲۰ وګـوره د هغـه خپـل کتـاب صفـة العلـو

(۱۳) امـام مسـلم رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۶۱ وګـوره صحيـح مسـلم و اجتـماع الجيـوش ۲/۲۴۱

(۱۴)امـام بيهقـي رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۴۵۸ وګـوره د هغـه خپـل کتـاب الأسـماء والصفـات ۲/۳۲۱ ـــ۳۲۲

(۱۵) امـام عبداللـه بـن يوسـف الجوينـی رحمـه اللـه المتوفـی هـ۴۳۸ وګـوره رسـالة فـی اثبـات الاسـتواء والفوقيـة لـه

(۱۶) امـام ابـو حامـد الاسـفرائنی رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۴۰۶وګـوره اجتـماع الجيـوش ۲/۱۹۲ والعـرش للذهبـی ۲/۳۵۳

(۱۷) امـام ابـن ابي زَمَنِـين المالکـی رحمه اللـه المتوفـی هـ ۳۹۹ وګـوره أصـول السـنة لـه ص ۱۱۴ اجتـماع الجيـوش

(۱۸) امـام قرطبـي رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۶۷۱ وګوره تفسـير القرطبـی۱/۲۵۶ واجتـماع الجيـوش ۲/۲۶

(۱۹) امـام ابوجعفـر الهمدانـی رحمـه اللـه المتوفـی هـ وګـوره مجمـوع الفتـاوی لابـن تيميـة ۴/۴۴ والعـرش للذهبـي ۱/۱۵۳و اجتـماع الجيـوش ۲/۲۷۵ و بيـان تلبيـس الجهميـة ۱/۵۴

(۲۰) امـام بـن القيـم رحمـه اللـه المتوفی هـ۷۵۱ وګوره اجتـماع الجيوش

(۲۱) امـام حافـظ تقـی الديـن عبدالغنـی المقدسـی رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۶۰۰ وګـوره د ده کتـاب عقيـدة الحافـظ ...ص۴۰،۴۱،۴۲

(۲۲) امـام دارمـي رحمـه اللـه المتو فـی ۲۸۰هـ وګـوره د هغـه خپـل کتاب نقـض الامـام ابـی سـعيد ۱/ ۲۲۶

(۲۳) امـام بـن منـده العبـدي رحمـه اللـه المتوفـی هـ۳۹۵ وګـوره د ده خپـل کتـاب التوحيـد ص۴۹۴

(۲۴) امـام نسـايي رحمـه اللـه المتوفی هـ۳۰۳ وګوره السـنن الکـبري ۷/۳۳۸ رقـم الحديـث ۵۹۰۶ و ۸۱۶۶

(۲۵) امـام عبدالرحـمان المهـدی رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۱۹۸وګـوره اجتـماع الجيـوش ۲/۲۱۴ خلـق افعـال العبـاد للبخـاری ص۱۷

(۲۶) امـام عبداللـه بـن احمـد رحمـه اللـه المتوفـی هـ۲۹۰ وګـوره السـنة د ده خپـل کتـاب

(۲۷) امـام بـن جريـر الطـبري رحمـه اللـه المتوفـی هـ۳۱۰ وګـوره اجتـماع الجيـوش ۲/۱۹۴

(۲۸) امـام ترمـذي رحمـه اللـه المتـوفي هـ ۲۹۷وګـوره جامـع الترمـذی کتـاب التفسـير تحـت حديـث رقـم ۳۲۳۹ واجتـماع الجيـوش ۲/۲۴۳

(۲۹) امـام ابوالقاسـم هبـة اللـه اللالکائی رحمـه اللـه المتوفـی ۴۱۸ه وګـوره د ده خپـل تصنيـف شرح اعتقـاد اهـل السـنة ۳/۴۲۹

(۳۰) امـام محـی السـنة البغـوي رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۵۱۰وګـوره اجتـماع الجيـوش ۲/۱۹۹

(۳۱) نعيـم بـن حـماد الخزاعـي رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۲۸ وګـوره اجتـماع الجيـوش ۲/۲۲۱ العـرش للذهبـي ۲/۳۰۵

(۳۲) امـام اسـحاق ابـن راهويـه المـروزي رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۳۸ وګـوره السـنة للخـلال و اجتـماع الجيـوش ۲/۲۲۶ والعـرش للذهبـی ۲/۱۰

(۳۳) امـام عبداللـه بـن مسـلم بـن قتيبـه رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۷۶ وګـوره د ده کتـاب کتـاب تأويـل الحديـث فـی الـرد علـی اعـداء اهـل الحديـث کامـلا والعـرش للذهبـی ۲/۳۴۵

(۳۴) امـام يحيـی بـن يحيـی بـن کثـير الليثـي رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۲۶ وګـوره العـرش للذهبـی ۲/۲۳۳

(۳۵) امـام يزيـد بـن هـارون رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۰۶وګـوره اجتـماع الجيـوش ۲/۲۱۴

(۳۶) حـماد بـن زيـد رحمـه اللـه المتوفی هـ ۱۷۹ وګـوره العـرش لابـن ابـی شـيبة ص۱۵۱ العـرش للذهبـي ۱/۱۲۲

(۳۷) امـام ابوبکـر احمـد بـن عمـرو بـن أبي عاصـم رحمـه اللـه المتوفي هـ ۲۸۷ وګـوره د ده کتـاب السـنة

(۳۸) امـام ابوبکـر المـروزی رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۷۵وګـوره اجتـماع الجيـوش ۲/۲۰۱

(۳۹) امـام ابوجعفـر محمـد بـن عثـمان بـن ابـی شـيبة رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۹۷ وګـوره العـرش ومـاروی فيـه لـه

(۴۰) امـام ابوبکـر بـن الأثـرم رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۲۷۳ وګـوره العـرش للذهبـی ۲/۳۳۶

(۴۱) امـام ابوبکـر بـن الخـلال رحمـه اللـه المتـوفي هـ۳۱۱ وګـوره السـنة له ۱/۲۶۷

(۴۲) امـام ابـو شـيخ الأصبهانـی رحمـه اللـه المتوفي هـ ۳۶۹ وګـوره د ده خپل کتـاب العظمـة ۲/۵۴۱،۵۴۲،۵۴۳

(۴۳) امـام ابـو عبداللـه بـن منـده العبـدي رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۳۹۵ وګـوره د ده کتـاب التوحيـد ۱/۱۱۴ و۱/۱۶۳ و۲/۱۶۹

(۴۴) امـام ابـو احمـد العسـال رحمـه اللـه المتوفي هـ۳۴۹ وګـوره د ده خپـل کتـاب المعرفـة او العـرش د امـام ذهبـي رحمـه اللـه

(۴۵) امـام الطبرانـی رحمـه اللـه المتوفی هـ ۳۶۰ وګـوره د ده کتـاب معجـم الکبيـر

(۴۶) امـام ابـو اسـماعيل الأنصـاري الهـروي رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۴۸۱ وګـوره د هغـه خپـل کتـاب. الصفـات

(۴۷) امـام ابـو عمـر الطلمنکـي رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۴۲۹ وګـوره اجتـماع الجيـوش ۲/۱۴۲

(۴۸) امـام ابـو عمربـن عبدالـبر رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۴۶۳ وګـوره اثبـات صفـة العلـو ص۶۶ واجتـماع الجيـوش ۲/۱۴۳

(۴۹) امـام سـفيان بـن عيينـه رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۱۹۵ وګـوره تفسـير الثعلبـی واجتـماع الجيـوش ۲/۲۲۳

(۵۰) امـام عبداللـه بـن المبـارک رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۱۸۱ وګـوره اثبـات صفـة العلـو وګـوره درء التعـارض العقـل والنقـل ۲/۳۴ واثبـات صفـة العلـو ص ۱۷۱ واجتـماع الجيـوش ۲/۲۱۴

(۵۱) امـام ابـو يوسـف رحمـه اللـه المتـوفي هـ۱۸۲ وګـوره المعرفـه لابي العسـال والعـرش للذهبـي ۲/۲۴۷

(۵۲) امـام ابـو المعـالي الجوينـي رحمـه اللـه المتـوفي هـ ۴۷۸ وګـوره الحمويـة الکـبری ص ۵۱۴

(۵۳) سـفيان الثـوري رحمـه اللـه المتوفـی هـ ۱۶۱ وګـوره شرح اصـول اعتقـاد أهـل السـنة ۱۹/۱۵ د لتـه مونـږ دغـه د يـو څـو علـماوو چـې د اهـل السـنة والجماعـه د قبيلـو ځـخـه دي حتـا چـې اکـثر لـه دوی ځـخـه بلکـې ټـول د امامانـو د جملـې ځـخـه دي د هغـوی اسـماء ګرامـي مـو ذکـر کـړل چـې لـه دې ځـخـه مونـږ دا ثابتـول غـواړو چـې هغـوی د اللـه سـبحانه وتعالـی متعلـق د فوقيـة بالـذات عقيـده لرلـه او يـو هـم لـه دوی ځـخـه پـه دې کـې تاويـل اختـلاف او تـردد نـه دی کـړی دغـه ډول کـه پـه دې بـاب کـې د امـة مسـلمه د متقدمينـو او متأخرينـو نـورو فقهـاوو نومونـه ذکـر کـول وغـواړو نـو دا پـه لـس او شـل جلـده کتابونـو کـې هـم نـه ځايـږي، نـو تاسـو بـه د دې ځـخـه دا علـم او اعتقـاد اخـذ کـړی وي چـې اللـه تبـارک وتعالـی د ذات پـه اعتبـار سره د اسـمانونو نـه بـره دی، او همـدا د مؤمـن اعتقـاد او د کتـاب سـنت او اجـماع د امـت سره سره د سـليم فطـرت تقاضـا هـم ده، نـو اوس راځـو او د لـوي اللـه متعـال پـه توفيـق مرسـته او مـدد د دې عقيـدې څلـورم قسـم اثبـات هغـه د عقـل او فطـرت ځـخـه هـم کـوو ان شـاء اللـه.




## شپږم درس : صحيح البخاري كتاب الجهاد

الحمد لله رب العالمين والصلاة والسلام على رسوله الأمين وعلى أزواجه وأصحابه ومن تبعهم في إحسان إلى يوم الدين أما بعد:

محترمو مسلمانانو ورونو او خويندو!

مونږ مخكې درس كې د لوى الله په توفيق سره د الفلاح والرشاد په سلسله واره لړۍ، درسونو څخه په تير شوي درس كې د صحيح البخاري د كتاب الجهاد څخه د شپږم حديث وضاحت او تفصيل ذكر كړو چې پاتې د تفصيل برخه به يې ان شاء الله د لوى الله متعال په توفيق په دې درس كې ذكر كړو، راځو د شپږم حديث پاتې برخې شرحې او وضاحت ته.

### بابٌ الحظ المزيد بإثبات من مات في سبيل ربه دون القتل فهو شهيد

په دې باب كې غواړو چې د هغه سوال جواب ذكر كړو چې ايا يو انسان جهاد ته ووځي په دغه لار كې هجرت وكړي او دا د كفارو سره د معركې او قتال نه بغير وفات شي، نو د ده حكم څه دى؟ جواب دا دى چې ظاهر د كتاب او سنت دليل دى په دې چې دا شهيد دى الله سبحانه وتعالى په سورة الحج ٨٥ نمبر اية كريمه كې فرمايي:

والذين هاجروا في سبيل الله ثم قتلوا أو ماتوا ليرزقنهم الله رزقا حسنا.

ژباړه: او هغه كسان چې دوى هجرت كړى دى په لاره د الله كې بيا دوى (د دشمن د لاسه) قتل شي او يا هم په خپل مرگ سره وفات شي خامخا به روزي وركړي دوى ته الله سبحانه وتعالى خايسته روزي.

دغه ډول په سورة النساء ١٠٠ نمبر ايت كريمه كې فرمايي:

ومن يخرج من بيته مهاجرا إلى الله ورسوله ثم يدركه الموت فقد وقع أجره على الله.

ژباړه: او څوك چې ووت له كور خپل څخه په داسې حال كې چې هجرت كوونكى وي الله او رسول طرف ته بيا ده لره مرگ راگير كړي پس بې شكه واقع شو اجر د ده په الله باندې.

نو د دې اياتونو د عموم نه معلوميږي چې د دوى په درجه كې فرق نه شته نو دا دواړه شهيدان دي، وجه دا ده چې د شهادت لاره او سبب يې منتخب كړى نو ځكه يې مرتبه د شهادت گرځي دغه ډول په (١)مصنف ابن أبي شيبه كې د عمر رضي الله عنه نه نقل دي هغه فرمايي قال عمر، قال محمد صلى الله عليه وسلم من قتل في سبيل الله أو مات فهو في الجنة.

ژباړه: څوك چې د الله په لار كې شهيد كړى شو، او يا هم په خپل مرگ سره وفات شو، نو دا شهيد دى.

بل (٢) دويم حديث دا دى مسند احمد كې د عبد الله بن عتيك نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: (من خرج مجاهدا في سبيل الله فخر عن دابته أو لدغته حية أو مات حتف أنفه فقد وقع أجره على الله.

ژباړه: څوك چې د الله په لار كې جهاد كوونكى ووځي او دا بيا د خپلې سورلۍ نه وغورځيږي او يا يې هم مار وچيچي او يا هم په خپله بستره كې بغير د سبب نه وفات شي، نو بې شكه اجر د ده په الله دى.

بل دريم(٣) دليل هغه حديث دى كوم چې أبو مالك الأشعري رضى الله عنه د نبي صلى الله عليه وسلم څخه نقل كوي چې فرمايي: من وقصه فرسه أو بعيره أو لدغته هامة أو مات على فراشه، على أي حتف شاء الله، فهو شهيد.

ژباړه: څوك د اسپ يا اوښ نه پريوځي او مړ شي او يا يې څه حشره ووچيچي او يا بې سببه په خپله بستره باندې مړ شي، او كه په هرحال چې الله وغواړي مړ شي، نو دا كس شهيد دى.

أخرجه الحاكم وقال: صحيح على شرط مسلم. دې باب كې نور هم گڼ اثار او روايات موجود دي خوفعلاً پدې مقام كې دغه قدر كافى گڼم والحمد لله رب العالمين.

### باب درجات المجاهدين في سبيل الله

ژباړه: باب ثابت دى په بيان د درجو د هغو مجاهدينو كې چې هغوى په لاره د الله كې (جهاد كوونكي) وي.

### حصول الأجر والثواب
### بتشريح الكلمات ما فى ترجمة الباب

دلته هم د مخكې پشان د (باب) نه مخكې كلمه د (هذا) مقدر ده ټول ترجمة الباب به داسې لوستلى شي، هذا باب في بيان درجات المجاهدين في سبيل الله، يقال: هذه سبيلي وهذا سبيلي قال أبو عبد الله {غزى} واحدها غاز {هم درجات} لهم درجات (ضيافة الحواري في ذكر غرض البخاري )

يقال هذه سبيلي وهذاسبيلي ...

د امام بخاري رحمه الله غرض په دې سره هغه دا ثابتول دي چې د (سبيل) كلمه د هغې قبيلي څخه ده چې مذكر او مؤنث دواړه پكې مراد كولى شي، ځكه وايي( هذه سبيلي او هذا سبيلي)

همدا وجه چې علماء په {ليضل عن سبيل الله بغير علم ويتخذها هزوا.. لقمان ٦ } كې په يتخذها كې (ها) ضمير اياتونو د قران ته هم راجع كوي او سبيل ته هم ځكه سبيل مونث هم ده دليل وربانديې دا ايت دى {قل هذه سبيلي يوسف ١٠٨} دغه ډول په قراءة د أبي بن كعب، رضي الله تعالى عنه: كې سورة الأعراف ( ١٦٤) داسې نقل دى {وإن يروا سبيل الرشد لا يتخذوها سبيلا} او (سبيل الله) د الله هغې لارې ته وايي چې الله پرې د تلو امر كړى وي او جمع يې( سُبُل) په وزن د فُعُل راځي. قال أبو عبد الله نه مراد همدا بخاري رحمه الله

(غزى) په ضمي پيش د غَين او په تشديد د زاى سره دا جمع د (غاز) ده .

او بخاري فرمايي د (...هم درجات) تفسير (لهم درجات) دی معنا يې ده ( لهم منازل) يعنې دوی لپاره منزلي دي.

### مطرالرحمة والسحاب
### بذكر مناسبة الباب مع الكتاب

دا باب د كتاب الجهاد د ابوابو په شمير سره څلورم ۴ نمبر باب دی، امام بخاري رحمه الله په دې کې دوه حديثه ذكر كوي، يو له ابو هريره او بل له سمرة بن جندب رضی الله عنهما څخه مناسبت يې د مخکې باب سره په دې ډول دی چې مخکې باب کې طلب د جهاد او شهادت ذکر شو نو دې باب کې دا خبره ذکر کوي چې جهاد کې درجې تفاوت لري، نو اوچته درجه ځانته وغواړه او مناسبت يې د كتاب الجهاد سره هم ښکاره دی، چې هغه د جهاد د فضيلت او غوروالی له وجې نه د مجاهدينو درجې دي، والله أعلم.

### (۷ حديث)

(رقم الحديث ۲۷۸۹) عن أبي هريرة رضي الله عنه، قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من آمن بالله وبرسوله، وأقام الصلاة، وصام رمضان كان حقا على الله أن يدخله الجنة، جاهد في سبيل الله أو جلس في أرضه التي ولد فيها فقالوا: يا رسول الله، أفلا نبشر الناس؟ قال:إن في الجنة مائة درجة، أعدها الله للمجاهدين في سبيل الله، ما بين الدرجتين كما بين السماء والأرض، فإذا سألتم الله، فاسألوه الفردوس، فإنه أوسط الجنة وأعلى الجنة - أراه - فوقه عرش الرحمن، ومنه تفجر أنهار الجنة قال محمد بن فليح، عن أبيه: وفوقه عرش الرحمن.

ژباړه: د ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی فرمايي: چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چا چې په الله او د هغه په رسول إيمان راوړ او د لمونځ پابندي يې وکړه او د رمضان د مياشتې روژه يې ونيوله نو حق دی په الله دا چې داخل به کړي هغه لره جنت ته که جهاد يې کړی وي د الله په لار کې او که ( نه يې وي کړی) او په هغه ځمکه کې ناست وي کومه کې چې پيدا شوی دی، نو صحابه وو وفرمايل ايا زيری ورنه کړو په دی سره خلکو ته نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: بې شکه په جنت کی سل (۱۰۰) درجې دي چې الله د هغو مجاهدينو لپاره جوړې کړي چې د الله لار کې جهاد کوي او د هر دوه درجو تر مابين دومره فرق دی لکه د اسمان او د ځمکې، پس چې کله هم د الله نه جنت غواړئ نو د فردوس جنت ترينه غواړئ بس بې شکه دا د جنت منځ کې دی او اعلی (اوچتې درجې والا) جنت دی (راوي شک کوي فرمايي) زما گمان دی (چې نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل: چې د دې فردوس جنت له پاسه د رحمن ذات عرش دی او د همدې (فردوس جنت نه) د نورو جنتونو نهرونه روان شوي دي، او محمد بن فليح د خپل پلار فليح نه نقل کړی چې بره د دې جنت نه د رحمن عرش دی.

التفكر والمراقبة فی ذكر التطبيق والمناسبة

په دې حديث کې د امام بخاري رحمه الله شيخ او استاذ هغه يحيى بن صالح الوحاظي دی، أبو زكرياء يې كنيه او الشامي الدمشقي يې نسبتي القاب دي، او الحمصي ورته هم ويل کيږي د توثيق او تعديل په باب کې د ثقةٌ په وصف موصوف دی،

چې له ده نه بخاري رحمه الله دغه حديث په سند سره د ابوهريره رضی الله عنه نه ذکر کوي،

د مذکوره حديث مناسبة د باب سره صراحة هغه په مائة درجة اعدها الله للمجاهدين .....اود مابين الدرجتين ...په کلمو سره دي ځکه باب کې مطلق درجې ذکر شوي او په حديث کې د هغې اثبات او تفصيل ذکر دی چې هغه سل ۱۰۰ درجې دي والله اعلم

### إغاثة المغيث بذكر شرح الحديث

(من امن بالله ورسوله) دلته اگر چې يو رسول ذکر دی نو رسولان نه دي ذکر شوي، وجه دا ده چې په دې نبي صحيح ايمان لرونکی په ټولو ايمان لرونکی گرځي له دې وجې نه چې دا نبي د نورو انبياوو د حقانيت او هغوی باندې د ايمان راوړلو دعوت ورکوي بيا دا جمله چې (وأقام الصلاة وصام رمضان). دليل دی په دې چې صرف ايمان راوړل فايده نه کوي ترڅو عمل ونه کړي نو دليل شو په دې چې اعمال په ايمان کې داخل دي، (اوجلس فی أرضه) دا دليل دی چې د جهاد په نه کولو سره سړی نه کافر کيږي هغه بيله خبره ده چې د خير نه محروميږي چې هغه حصول د هغو درجو دی چې دلته ذکر شوي دي.

شفاء الأمراض بدفع الشبهة و الاعتراض

بيا دلته سوال دا دی چې حج او زکات يې ذکر نه کړه دا ولې؟ نو ابن بطال خو دا جواب کړی چې د دې حديث د ويلو وخت کې حج او زکات نه ؤ فرض شوي نو ځکه يې نه دی ذکر کړی.

خو صاحب د تلويح په دې جواب رد کړی کوم چې علامه عينی نقل کړی دی، او هغه دا دی چې هغه فرمايي دې جواب د ابن بطال کې نظر دی او هغه دا چې زکات د خيبر نه مخکې فرض شوی وو، او ابوهريره رضی الله عنه اسلام د خيبر په کال راوړی نو ستا جواب کمزوری دی، او کرماني ويلي دي چې کيدای شي چې لا دغه وقت زکات او حج د وجوب په درجه کې نه او يا يې د تسامح په وجه نه وي ذکر کړی.

خو عيني رحمه الله د کرماني په جواب رد کوي او فرمايي چې دا هم د ابن بطال غوندې جواب دی، او هغه دا چې د جامع الترمذي په روايت کې د معاذ رضی الله عنه نه چې نقل دي هغې کې حج هم ذکر دی او په هغې کې د زکات باره کې راوي وايي (لا أدرى أذكر الزكاة أم لا.) يعنې زه نه پوهيږم چې دلته زما استاذ زکات ذکر که او که نه عمدة القارى / خو حافظ ابن حجر رحمه الله هم ترمذي والا د معاذ رضی الله عنه روايت ذکر کوي چې هغې کې حج ذکر دی دويم جواب ذکر کوي او فرمايي: وأيضا فإن الحديث لم يذكر لبيان الأركان فكان الاقتصار على ما ذكر إن كان محفوظا لأنه هو المتكرر غالبا وأما الزكاة فلا تجب إلا على من له مال.

بشرطه والحج فلا يجب إلا مرة على التراخي

ژباړه: او همدا ډول دا چې بې شکه حديث دا د ارکانو د بيان لپاره نه دی ذکر نو بس په همدې څه چې ذکر شوی په دې اکتفا شوی ده، (په دې شرط) که چيرته د دې حديث نقل محفوظ وي ځکه چې دا غالباً مکرر ذکر شوی دی، او بهر حال زکات چې دی نو دا نه واجبيږي مگر په هغه چا چې هغه په دې شرط چې مال ولري، او حج چې دی نو دا نه واجبيږي مگر يو ځلی په ځنډ سره ۶/۱۲ -

(جاهد في سبيل الله أو جلس في أرضه التي ولد فيها) شارحين ليکي په دې جمله کې ارام او سکون ورکول دي هغه چا ته چې د جهاد نه محروم دي او ورته زيري دي په دې چې جنت نه محروم نه شي هغه درته په صحيح ايمان او په اداء د فرائضو هم حاصليږي، اگر چې درجې د مجاهد نه د دې مقام او درجه ټيټه او کمه ده. نو چې کله صحابه کرامو دا خبره واوريده نو طبعاً خوشحاله شو نو (فقالوا) تپوس کوي چې (يا رسول الله، أفلا نبشر الناس؟) ای د الله رسوله خلکو ته خبر ورنه کړو .. د ترمذي په روايت کې دی چې معاذ رضي الله عنه وفرمايل: چې ما ورته وفرمايل چې ای د الله رسوله (الا أخبرالناس؟) او د طبراني په روايت کې دي چې ابو درداء رضي الله عنه فرمايي: (فقلنا) يعنې مونږ وويل ...نو تطبيق ښکاره دی چې ابو هريره نه بغير نورو صحابه وو تپوس کړی دی (كان حقا على الله) د دې په شرح کې علامه قسطلاني ليکي بطريق الفضل والكرم لابطريق الوجوب.

ژباړه: يعنې دغه جنت ته د داخلولو حق الله تفضلاً او كرامةً په ذمه اخستی نه چې دا پرې واجب ده. ( جاهد في سبيل الله أو جلس في أرضه التي ولد فيها) د دې جملې په شرح کې د مصابيح بعضو شراحو ويلي چې دا تسويه يعنې برابر والی دی، د شارع له طرف نه په منځ د مجاهد او غير مجاهد کې نو حافظ بن حجر پرې تعقبا ليکی.

أن التسوية ليست على عمومها وإنما هي في أصل دخول الجنة لا في تفاوت الدرجات.

ژباړه: بې شکه تسويه برابر والی په عمومي لحاظ سره نه دی بلکې اصل کې دا تسويه د جنت د دخول په باره کې ده نه په حصول د درجاتو د هغی کې ۶/۱۲

(إن في الجنة مائة درجة.....) دا تعليل دی د منع او ترک البشارة ځکه مراد په دې سره معلوم شو، او هغه دا چې تاسو خلکو ته خبر مه ورکوئ ځکه که دوی په دې خبر شي نو د مفضول په حصول کې به د أفضل نه محروم شي يعنې دوی

خو به د فرائضو په عملي کولو سره جنت ته داخل شی خو د جهاد په وجه چی کوم عالي درجات او مقامات دي، د هغې نه به شاته پاتې شی (و ما بين الدرجتين كما بين السماء والأرض) او د ترمذي په روايت کې دی چې ( مَا بَيْنَ كُلِّ دَرَجَتَيْنِ مِائَةُ عَامٍ) چې امام ترمذي رحمه الله د هغی روايت متعلق فرمايي : هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

او د طبراني په روايت کې دي چې ( خمسمائة عام) ابن حجر فرمايي که چيرته دا طريقه محفوظ وي نو بيا د دې اختلاف تطبيق د رفتار پورې اړه لري ۶/۱۳

(فإذا سألتم الله، فاسألوه الفردوس)

د فردوس په معنا کې د علماوو مختلف أقوال دي.

(۱) دا هغه باغ ته وايي چې دې کې هر قسم ونې، گلان او نباتات موجود وي.

(۲) منتزه أهل الجنة د جنتيانو پارک او تفريح گاه.

(۳) ربوة الجنة جنت کې اوچت ځای.

(۴) هغه ځای چې په هغې کې گڼ أنگور وي.

(۵) الفردوس الأودية التي تنبت ضروبا من النبات هغه لښتی چې په هغې باندې هر قسم شينکي راشنه شوي وی الغرض فردوس جنت په جنتونو کې أعلی جنت دی، نو فلهذا د دې طلب او سوال کول ضروري دي.

اللهم أرزقناها وأبوينا وأهلنا وأسرتنا وجميع إخواننا المجاهدين الأمراء والمأمورين وعامة المسلمين آمين يارب العالمين.

(فإنه أوسط الجنة) د أوسط نه مراد أفضل دى يعني (أفضل الجنة) ځکه اوسط د أفضل په معنا هم راځي، لکه سورة البقرة ٣٤١ کې دي چې: (وكذلك جعلناكم أمة وسطا} اية..

(خيارا) يعني غوره او أفضل (وأعلى الجنة) يعني عالي او أرفع معنا اوچت حيثيت لري معنوي يا حقيقة په نورو جنتونو بلند دى.

- (أراه - فوقه عرش الرحمن) دلته دا شک د بخاري د شيخ يحى بن صالح نه شوى دى،

(ومنه) ضمير فردوس جنت ته راجع دى ( تفجر أنهار الجنة) يعني د دې فردوس جنت نه د نورو جنتونو ويالي رواني شوي او جاري شوي دي. او حافظ فرمايي

ووهم من زعم أن الضمير للعرش.

او وهم کړى هغه چا چې ضمير يې عرش ته راجع کړى دى. [الفتح ٦/١٣]

(قال محمد بن فليح، عن أبيه: وفوقه عرش الرحمن) په دې تعليق سره امام بخاري رحمه الله دفع د هغه شک کوي کوم چې د يحيى نه واقع شو په دې لفظ سره چې ( أراه فوق ....) ځکه نورو راويانو چې دغه حديث د فليح نه روايت کړى نو هغوى په جزم سره روايت کړى دى، او دا د بخاري رحمه الله عادت دى چې حتى الوسع کوشش کوي چې حديث سالم بې عيبه پيش کوي، خو دلته اعتراض دا دى چې بخاري رحمه الله فرمايي قال محمدبن فليح ....او حال دا چې د بخاري رحمه الله د محمد بن فليح سره لقاء نده شوي نو جواب دا دى چې دغه معلق روايت بخاري رحمه الله په كتاب التوحيد د خپل صحيح کې په (باب وكان عرشه على الماء) کې بې له شکه په جزم سره د محمد بن فليح نه د ابراهيم بن المنذر په واسطې سره موصول ذکر کړى دى نو په دې بناء سره اعتراض ختم شوو والحمد لله رب العالمين.

فوائد الحديث

١ - حديث دليل دى په دې چې جهاد اصل کې فرض کفايي دى خو بعضې صورتونو کې فرض عين ګرځي او هغه بحث مخکې تېر شوى.

٢ - د هرنيک عمل نه مخکې ايمان بالله و بالرسول لازم اوضروري دى.

٣ - چې يو انسان بلکل جهاد نه وي کړى نو هغه هم جنت ته داخلېږي خو چې ايمان يې صحيح او د اسلام په ارکانو عمل کونکى وي.

٤ - چاته په سهولت او أسانتيا بشارت او زيرى ورکول صحابه کرامو کې معمول بهاوو.

٥ - کله کله يوه حق او رښتيني مسأله د يو جايز حکمت له وجهې نه پټولى شي.

٦ - د جنت دغه عالي سل ١٠٠ درجې صرف د مجاهدينو لپاره تيارې شوي دي.

٧ - جنتونو کې فردوس اعلىٰ او بهترين جنت دى.

٨ - جهاد ډير اوچت عمل دى ځکه نو جهاد کوونکو درجې هم اوچتې دي.

٩ - دليل دى په دې چې الله سبحانه وتعالىٰ بره دى ځکه عرش يې د آسمانونو د پاسه دى.

١٠ - د الله سبحانه وتعالىٰ نه همېشه په سوال کولو کې بهتر او عالي شى غوښتل پکار دي.

**حديث ٨**

رقم الحديث ٢٧٩٠

عَنْ سَمُرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْه قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: رَأَيْتُ اللَّيْلَةَ رَجُلَيْنِ أَتَيَانِي، فَصَعِدَا بِي الشَّجَرَةَ، فَأَدْخَلاَنِي دَارًا هِيَ أَحْسَنُ وَأَفْضَلُ، لَمْ أَرَ قَطُّ أَحْسَنَ مِنْهَا قَالاَ: أَمَّا هَذِهِ الدَّارُ فَدَارُ الشُّهَدَاءِ.

ژباړه: د سمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت دي هغه فرمايي: چې نبي صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ما نن شپه په خوب کې دوه کسان ولیدل چې ماته راغلل دواړو زه يوې ونې ته وخيجولم پس يو کور ته يې په هغې کې داخل کړم داسې کور چې هغه ډېر ښايسته او ډېر أفضل و ما بلکل د دې په شان ښايسته کور نه دى لیدلى دواړو راته وويل: چې بهر حال دا د شهداوو کور دى

التفکر والمراقبة فى ذکر التطبيق والمناسبه

په دې حديث کې د امام بخاري شيخ او استاذ هغه موسىٰ بن اسمعيل ابو سلمه المنقرى دى چې التبوذ کې ورته هم ويل کېږي د توثيق او تعديل په دنيا کې د (ثقةٌ ثبتٌ) په درجه موصوف دى بخاري رحمه الله د ده نه تر سمره بن جندب پورې دا حديث په سند سره ذکر کوي ياد دې وى چې دا حديث بخاري رحمه الله په کتاب الجنائز کې په (باب مايقال فى اولاد المشرکين) کې مطول ذکر کړى دى د دې نه بغير يې په البيوع په بدء الخلق په صلاة الليل ا وپه الأدب: ا وپه الصلاة او په أحاديث الأنبياء، عليهم الصلاة والسلام، او په التفسير اوپه التعبير کې هم ذکر کړى دى بيا علماء کرام لېکي لطيفه په دې حديث کې هغه دا ده چې دا د بخاري رحمه الله د رباعياتو څخه دي يعني د بخاري او د رسول الله صلى الله عليه وسلم ترمنځه څلور واسطې دي بيا د ترجمة الباب سره د حديث مناسبت ښکاره او واضح دى هغه دا چې شهداوو ته د جهاد په وجه دغه شان مرتبې او درجې ورکول کېږي کوم چې په حديث کې ذکر شوي إغاثة المغيث بذكرشرح الحديث

(رجلين أتياني ..) دا دواړه ملائکې وې چې يو جبرئل او بل مکائل عليهما السلام وو ( أحسن وأفضل) دا د أوسط معنىٰ ده کوم چې مخکې حديث کې ذکر شوى نو دا حديث د هغې لپاره تفسير دس نو ګويا چې دلته يې وويل چې د أوسط نه مراد أفضل او أحسن دى قاله الحافظ بن حجر في [الفتح ٦/١٣]، (أما هذه الدار فدار الشهداء) ددې نه معلومېږي چې د درجونه مراد دغه نعمتونه دي چې مختلف صورتونه لري چې يو د هغې څخه دغه کور دى.

فوائد الحديث

١ - انبياء عليهم السلام هم خوبونهويني چې دليل دى په بشريت او مخلوق والي د دوى.

٢ - د أنبياوو خوبونه وحې وي.

٣ - أنبياء په غيبو نه پوهېږي.

٤ - که څوک يوڅيز نه پېژني نو د بل نه پوښتنه کولى شي چې دا څه شى دى؟

٥ - د شهداوو درجې ډېرې أوچتې دي چې له هغې نه ښايسته او غوره درجې نورې نه شته.

**رقم الباب ٥**

**باب الغدوة والروحة في سبيل الله وقاب قوس أحدكم من الجنة**

ژباړه: باب ثابت دى په بيان د فضيلة د يو صبايي او د يو بيګايي وتلو په لاره د الله جل جلاله کې او په فضيلة د يو پاتې د لیندۍ ( دځاى په مقدار) د يوکس ستاسې نه په جنت کې





### حصول الأجر والثواب بتشريح الكلمات ما فى ترجمة الباب

(باب) يعني( هذا باب) في بيا ن فضل (الغدوة في سبيل الله) يعني في الجهاد (وقاب قوس احدكم من الجنة) دا هم مجرور لوستل کېږي عطف دی په ماقبل باندې لوستل به يې په دې ډول وي (وفی بيان فضل قدر قوس أحدكم من الجنة ) نو د ترجمة الباب دا معنیٰ امام بخاري رحمه الله وروسته دوه حديثونو کې ثابتوي او دا جمله چې (وقاب قوس ...الخ) دې کې وقابِ مجرور ويل پکار دی ځکه دا عطف دی په (الغدوة) باندې ځکه امام بخاري دې باب کې دا ثابتول غواړي چې جنت کې لږ مکان او لږ زمان د ټولې دنيا په مقابل کې غوره او بهتر دی.

### مطر الرحمة والسحاب بذكر مناسبة ترجمة الباب مع الكتاب

دا باب د کتاب الجهاد د ابوابو د عدد او شمېر په اعتبار سره ۵ نمبر باب دی امام بخاري رحمه الله به دې کې درې احاديث ذکر کوي يو د انس بن مالک بل د ابوهريره او دريم د سهل بن سعد رضی الله عنهم بيا مناسبت د دې باب د ما قبل سره په دې ترتيب دی چې مخکې باب کې د مجاهدينو درجې ذکر شوي او په دې باب کې دا خبره ذکر کېږي چې دا درجې او مرتبې د الله جل جلاله په لاره کې په لږ وخت وتلو کې هم حاصلېږي او د کتاب الجهاد سره يې مناسبت هغه هم ښکاره دی چې د الله په لار کې د جهاد او جهاد کونکي غوره والی او فضيلت دی والله اعلم

### (۹ حديث)

(رقم الحديث ۲۷۹۱)- عن أنس بن مالك رضي الله عنه، عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:

لغدوة في سبيل الله أو روحة، خير من الدنيا وما فيها

ژباړه: د انس بن مالک څخه روايت دی هغه د نبی صلی الله عليه وسلم څخه روايت کوي چې نبی صلی الله عليه وسلم وفرمايل خامخا يو سهار ( وتل يا تيرول ) په لاره د الله کې او يا يو بيگا (شپه) دا غوره دی د دنيا او هغه څه (مال او جمال) چې په هغې(دنيا) کې دي

التفكر والمراقبة فی ذكر التطبيق والمناسبة

په دې حديث کې د بخاري رحمه الله استاذ او شيخ هغه معلٰی بن اسد العمي البصری دی چې د تعديل او توثيق په باب کې د (ثقةٌثبتٌ) درجه لري له ده څخه دغه حديث امام بخاري رحمه الله په سند سره د انس بن مالک څخه نقل کوي بيا مناسبة د حديث د ترجمة الباب سره لفظي او معنوي دواړو طريقو سره دی. لفظي په ( فی سبيل الله) او.معنوی په (خير من الدنيا....) کلمې سره دی والله اعلم

### إغاثة المغيث بذكر شرح الحديث

( لغَدوةٌ ) په زبر د غَين سره دا د ورځې د اول نه تر زواله پورې وقت ته وايي خو علامه جوهري فرمايي: الغدوة ما بين صلاة الغداة وطلوع الشمس، غدوه د سحر د مانځه نه د لمر د ختلو پورې وقت ته وايي بيا دغه (لغدوة) مبتدا ده او لام پکې د تاکيد دی او يا هم دا قسم دی او أصول د نحوې دی چې کله مبتدا نکره وي نو ددې تخصيص به په صفت سره کيدېشي نو تقدير دادی ( لغدوة كائنة في سبيل الله ...) علامه قسطلاني فرمايي چې د ابوذر په نسخه کې چط د کهشميني نه يې روايت کړی هغې کې دغه روايت ( الغدوة) معرفه ذکر شوی دی ( او الروحة)، په زبر د راء سره دا د زوال نه بعد د شپې پورې وقت ته وايي بيا دلته (الروحة) عطف دی په (لغدوة) باندې او (أو) دلته د شك لپاره نه بلکې د تقسيم لپاره دی (خير) دا خبر دې د مبتدا چې هغه لغدوة ده (خير من الدنيا وما...) د دې جملې معنی قسطلاني او عيني داسې کوي.

ثواب ذلك الزمن القليل في الجنة خير من الدنيا و ماشتملت عليه.

(ژباړه: يعني ددې لږې زمانې اجر أو ثواب به د دنيا او څه چې په هغې کې دي د هغې ټولو څخه غوره وي [قسطلاني ۵/۳۹] [عمدة ۱۴/۹۲]

فوائد الحديث

[۱] دليل دی چې جهاد غوره او أفضل عمل دی.

[۲] د جنت لږ نعمت هم د ټولې دنيا څخه غوره او أفضل دی.

[۳] ترغيب دی جهاد کولو ته.

[۴] د الله په لار کې لږ وقت جهاد کول هم د الله د رضا او د جنت د حصول سبب گرځي.

اللهم ارزقنا هما يارب

### حديث ۱۰

رقم الحديث ۲۷۹۲

، عن أبي هريرة رضي الله عنه، عن النبي صلى الله عليه وسلم قال:

لقاب قوس في الجنة، خير مما تطلع عليه الشمس و تغرب و قال لغدوة او روحة في سبيل الله خير مما تطلع عليه الشمس و تغرب

(ژباړه: د ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی هغه د نبی صلی الله عليه وسلم څخه نقل کوي چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل : خامخا پاتې د لينديې په جنت کې دا غوره دی د هر هغه څه نه چې لمر پرې راخيژي او ډوبيږي او ويې فرمايل خامخا يو صبايي او يا يو بيگايي وتل په لاره د الله کې غوره دي د هر هغه څه نه چې لمر پرې راخيژي او ډوبيږي.

### التفكر والمراقبه فى ذكر التطبيق والمناسبة

په دې حديث کې د امام بخاري رحمه الله شيخ هغه ابراهيم بن المنذر الحزامي الأسدي دی د صدوق او حسن الحديث وصف او درجه لري ددې نه يې په سند سره دغه حديث د ابوهريره رضی الله عنه څخه روايت کړی دی بيا مناسبت او تطبيق يې د ترجمة الباب او د مخکې حديث سره لفظي أو معنوي دواړو طريقو سره په فضيلت او غوره والی د الله په لاره کې د غدوی (صبائی) او روحی (بيگايی) په وتلو سره دی والله اعلم

### إغاثة المغيث بذكر شرح الحديث

(لقاب قوس ...) کې لام د تاكيد دی او دا مبتدا ده

( فی الجنة) دا صفت د (لقاب قوس) دی (خير) داخبر دی د مخکې مبتداء ( مما تطلع عليه الشمس وتغرب) مراد ددې نه ټوله دنيا ده نو دليل شو چې لمر په ټوله دنيا راخيژي د حديث ذکر شوي فوايد بعينه ددې حديث فوايد هم دي لهذا دوباره ذکر کولو ته حاجت نه شته .

### حديث ۱۱

رقم الحديث۲۷۹۳

، عن سهل بن سعد رضي الله عنه، عن النبي صلى الله عليه وسلم قال: الروحة والغدوة في سبيل الله أفضل من الدنيا وما فيها

(ژباړه: د سهل بن سعد الساعدی رضی الله عنه نه روايت دی هغه د نبی صلی الله عليه وسلم نه روايت کوي (او فرمايي چې نبی صلی الله عليه وسلم) وفرمايل:

يو بيگايي او يا يو صبايي وتل په لاره د الله کې داغوره دي د دنيا او هاغه څه نه چې په دنيا کې دي

التفكر والمراقبه فی ذكر التطبيق والمناسبة

په دې حديث کې د امام بخاري رحمه الله شيخ او استاذ هغه قبيصة بن عقبه رحمه الله دی چې د تعديل او توثيق په باب کې د( ثقةٌ) په وصف موصوف دی چې له ده نه بخاري رحمه الله دغه حديث په سند سره د سهل بن سعد رضی الله عنه نه نقل کوي دې باب کې دا دريم حديث دې د ترجمة الباب او د مخکې حديث سره يې مناسبت په لفظي او معنوي طريقې دواړو سره دی.

شرح الحديث

د دې دواړو حديثونو د الفاظو شرح فوائد د دې باب په لومړي حديث کې ذکر شوي دي دوباره ذکر کول به يې د تکرار له قبيلي څخه وي.

حسن المأب فی خلاصة أحاديث الباب

په دې باب کې بخاري رحمه الله درې أحاديث راوړي.

(۱) حديث د أنس بن مالك

(۲) حديث د أبوهريره

(۳) حديث د سهل بن سعد: رضی الله عنهم أجمعين دي چې د ترجمة الباب سره جلي ښکاره او بديهي مناسبتونه لري، کوم چې مخکې ذکر شوي دي، والله أعلم .

علامه قسطلانی رحمه الله د دې باب د ټولو درې واړه احاديثو خلاصه حاصل ذکر کوي او فرمايي: والحاصل من أحاديث هذا الباب أن المراد تسهيل أمر الدنيا وتعظيم أمر الجهاد وأن من حصل له من الجنة قدر سوط يصير كأنه حصل له أعظم من جميع ما في الدنيا فكيف بمن حصل له منها أعلى الدرجات.

ژباړه: او حاصل د دې باب د احاديثو هغه دا دی چې مراد په دې سره د دنيايي أمورو بې قدري او د جهاد تعظيم او عزت ثابتول دي، او بل دا چې هر چا چې جنت کې ورته د يو چابک په مقدار سره ځای ميلاؤ شي، نو گويا چې ده ته ټول هر هغه څه چې په دنيا کې دي د هغې څخه غوره او بهتر ميلاو شو، نو د هغه چا به کومه مرتبه أو مقام وي چې جنت کې ورته د دې څخه أعلی درجې حاصلی شي شرح [القسطلانی ۵/۳۹]

د دې دواړو حديثونو فوائد د دې باب په لومړي حديث کې ذکر شوي دي، دوباره ذکر کول به يې د تکرار له قبيلي څخه وي، والحمد لله رب العالمين.

### باب الحور العين وصفتهن يحار فيها الطرف شديدة سواد العين شديدة بياض العين وزوجناهم أنكحناهم

ژباړه: باب ثابت دې په بيان د سپينو غټو سترگو والا زنانه وو او د دوی په صفاتو کې چې د داسې صفاتو والا دي چې نظرونه ورته په حيرت (حيرانتيا) پاتې کيږي، تور د سترگو يې زيات تور او سپين يې زيات سپين وي او د زوجناهم معنا انكحناهم ده.

### حصول الأجر والثواب بتشريح الكلمات ما فى ترجمة الباب

(بابٌ) دلته هم د مخکې غونډې نکره دی نو خبر دی د مبتدا محذوفي چې هغه ( هذا) إسم إشاره ده يعني( هذا باب في بيان الحور العين وبيان



صفتهـن) بيـا پـه بعضـې نسـخو د بخـاري كـې د {بـابٌ} لفـظ نشـته صرف (الحورالعـين) ذكـر دي نـو پـه دې بنيـاد سره بيـا (الحـور العـين) مرفـوع مبتـدا او خـبر يـې محـذوف دى چـې هغـه ( ماذكـر في هـذا الأحاديـث) نـو ټـول عبـارت بـه داسـې وي.

الحـور العـين وصفتهـن ماذكـر في هـذه الأحاديـث وزوجناهـم انكحناهـم.

دې سره يـې اشـاره ده د سـورة الدخـان ۴۵ نمـبر ايـت تـه چـې اللـه سـبحانه وتعالـى فرمايـي: وكذلـك زوجناهـم بحورعـين. نـو دا هـم يـو مناسـبت دى د ترجمـة البـاب سره چـې دغـه حيرانوونكـي حـورې بـه اللـه سـبحانه وتعالـى جنـت كـې مؤمنانـو تـه پـه نـكاح بانـدې وركـوي، واللـه اعلـم.

فَرحـة القلـوب والـسرور بتذكـرة معنـى الحـور

دې فصـل كـې غـواړو چـې پـه توفيـق د اللـه پـه ترجمـة البـاب كـې د ذكـر شـوي( حـور) د لفـظ معنـا او مفهـوم ذكـر كـړو، حـور پـه ضمـي پيـش د (حا) دا جمـع د حـوراٰء ده او پـه حـوراوات سره هـم جمـع كيـږي بيـا دا خـبره هـم يـاد سـاتئ چـې د دې حـور لفـظ اسـتعمال پـه ډيـرو معناګانـو سره راځـي.

(١) حـور اصـل كـې پـه لغـة كـې( بيـاض) سـپين والي تـه وايـي دا قرطبـي د ابـن عـون نـه نقـل كـړي او عامـه اصطـلاح د علـماوو كـې حـور ديتـه وايـي چـې د سـترګو تـور يـې خالـص تـور او سـپين يـې خالـص سـپين وي او دا معنـا ابـن ابـى الدنيـا رحمـه اللـه د حسـن بـصرى رحمـه اللـه نـه هـم نقـل كـړي، وګـوره [صفـة الجنـه رقـم الأثـر ٣٠٢]

او دا هـم ويـل شـوي چـې سـترګې يـې ټولـې تـكي تـورې وي لكـه د غرڅنـۍ او د غـوا پشـان د دې قـول والا بيـا دا هـم وايـي چـې انسـانانو كـې حـور نـه شـته البتـه دې زنانـه وو تـه حور د مشـابهت د وجـې نـه ويـل شـوي د غرڅنـۍ او غـوا سره او دې بـاره كـې دا هـم ويـل شـوي چـې حـور دې تـه وايـي چيـې سـپين د سـترګو يـې د تـور د سـترګو نه ښايسـته تـاو شـوي وي، مشـهور لغـوي علامـه الأصمعـى رحمـه اللـه فرمايـي حـور سـپين والي تـه وايـي ځكـه أعرابيـان د ښـارونو زنانـه وو تـه حواريـات وايـي ( لبياضهـن وتباعدهـن عـن قشـف الأعرابيـات بنظافتهـن) يعنـې كوچيـان د ښـارونو اوسـيدونكو زنانـه وو تـه حواريـات وايـې، د وجـې د سـپين والي او د لـري والي د هغـوى د هغـو خـيرو نـه او د هغـه پـاك والي پـه وجـه چـې د كوچيانـو د زنانـه وو نـه وي.

(٢)دغـه مـاده پـه نـصرت او خيرخواهـي كولـو كـې هـم اسـتعمال شـوي لكـه د صحيـح البخـاري روايـت كـې دي كـوم چـې د جابـر بـن عبداللـه نـه نقـل دي چـې نبـي صـلي اللـه عليـه وسـلم وفرمايـل: إِنَّ لِـكُلِّ نَبِـيٍّ حَوَارِيًّـا وَحَـوَارِيَّ الزُّبَـيْرُ " ، قَـالَ سُـفْيَانُ : الْحَـوَارِيُّ : النَّـاصِرُ .

دغـه ډول قـران كـې هـم دغـه معنـا اسـتعمال شـوي .قـال الحواريـون نحـن انصاراللـه ....الآيـة

(٣)دغـه ډول دا مـاده د رجـوع او واپـسي پـه ځـاى هـم اسـتعمال شـوي ده.

قرطبـى د ابـن عبـاس رضـى اللـه عنـه نـه نقـل كـړى چـې هغـه وفرمايـل: ما كنت أدري: ما يحور؟ حتى سمعت أعرابية تدعو بنية لها: حوري، أي ارجعي إلي.

ژبـاړه: وايـي ماتـه علـم نـه وو پـه دې چـې د (يحـور) لفـظ څـه معنـا ده تـر دې چـې د يـو اعـرابي نـه مـې واوريـدل چـې هغـه خپلـې لـور تـه اواز كولـو چـې [حُـورى] يعنـې راواپـس شـه مـا تـه، نـو قرطبـي رحمـه اللـه فرمايـي: فالحور في كلام العرب الرجوع.

ژبـاړه: نـو حـور د عربـو پـه كلام كـې رجـوع تـه ويلـى شي او بيـا فرمايـي ومنه قوله عليه السلام:" اللهم إني أعوذ بك من الحور بعد الكور" يعنې: من الرجوع إلى النقصان ....ژبـاړه: او لـه همـدې څخـه قـول د نبـي صلـى اللـه عليـه وسـلم دې چـې فرمايـي: اى اللـه زه پـه تـاه پنـاه نيسـم د حـور نـه وروسـته لـه كـور نـه يعنـې وروسـته د رجـوع او واپـسي كولـو نـه نقصـان تـه. [تفسـير القرطبـى ١٩/٢٧٣]

(۴) دغـه ډول د حـور دا مـاده د نقصـان او هلاكـت پـه معنـې كـې هـم اسـتعمال شـوي لكـه د عربـو مشـهور متـل دى( حـور فـى محـارة) يعنـې پـه نقصـان كـې نقصـان يـا دا چـې ( إنـه في حـور وبـور) يعنـې دغـه كـس پـه نقصـان او هلاكـت كـې دى.

(٥) دا د حـور مـاده د حيـرت او حيرانتيـا پـه معنـا هـم اسـتعمال شـوي لكـه څنګـه چـې امـام بخـاري رحمـه اللـه پـه ترجمـة البـاب كـې دغـه ذكـر كـړي ده او دا معنـا د امـام مجاهـد رحمـه اللـه نـه هـم نقـل ده چـې هغـه فرمايـي: الحور يحار فيها الطرف من رقة الحلل وصفاء اللون.

حـور هغـې تـه وايـي چـې نظـر پكـې حيرانيـږي د نـازک او نـرم لبـاس او صفـا رنـګ د وجـې نـه او دا د اسـامه بـن زيـد بـن اسـلم نـه هـم نقـل ده وګـوره صفـة الجنـة لإبـن أبي الدنيـا رقـم الأثـار [ ٣٠١ _ ٣٠٢ ] دغـه د حـور لفـظ دغـه مـاده پـه نـورو معنـا وو كـې هـم اسـتعمال شـوى ده، الغـرض حـور لفـظ مختلفـې معناګانـې لـري چـې بعضـې لـه هغـې څخـه پـه مـراد او مفهـوم كـې مترادفـې دي، مثـلا حـورې زيـات سـپين مخونـو والا حسـينو زنانـه وو تـه وايـي حـور د غټـو او ښايسـته سـترګو والا تـه وايـي، حـور ديتـه وايـي چـې نظرونـه ورتـه پـه كتـو سره تحـير حيرانتيـا كـې واقـع كيـږي، نـو تـر دې ځايـه خـو دغـه معناګانـې درې واړه پـه حـورو كـې موجـودي دي، ځكـه ښايسـته او د غټـو سـترګو او سـپين مخونـو والا دي چـې انسـان ورتـه پـه كتـو سره پـه تعجـب او حيرانتيـا سره پاتـې كيـږي او ولـې بـه داسـې نـه وي چـې رسـول اللـه صلـى اللـه عليـه وسـلم يـې پـه اړه فرمايـي: لِـكُلِّ امْـرِئٍ زَوْجَتَـانِ مِـنَ الْحُـورِ الْعِـينِ يُـرَى مُـخُّ سُـوقِهِنَّ مِـنْ وَرَاءِ الْعَظْـمِ وَاللَّحْـمِ.

ژبـاړه: او د هـر جنتـي لپـاره بـه دوه بيبيانـې وي د الحورالعيـن څخـه چـې د پنـډۍ د هډوكـي ماغـزه بـه يـې د هډوكـي او غوښـې نـه بهـر ښـكاريږي. [اللهـم ارزقناهـا يارحمـن الدنيـا والاخـرة ] صحيـح البخـاري رقـم الحديـث ٣٠٣٢

دغـه ډول د حـور پـه صفـت كـې د ( العـين) لفـظ وضاحـت هـم مطلـوب دى او هغـه دا چـې

العين) ، پـه كـسرى (زيـر) د عيـن او سـكون (غړونـدي) د يـا سره جمع د عيناء، ده او دا وايـي الواسعة العين، يعنـې پـراخ والي او غـټ والي د سـترګو تـه وايـي او دا جمـع پـه أصل كـې پـه ضمـي (پيـش) د عـين سره وه خـو حالانكـې يـا وروسـته د عـين د لفـظ نـه راغلـه نـو د ثقـل او بـل لـه دې كبلـه چـې دغـه يـا د ځـان نـه مخكـې كـسره غـواړي كومـه چـې تقاضـا د حـروف ليـن ده نـو ځكـه د عيـن لفـظ تـه كـسره زيـر وركـړل شـوه [ملخصـا مـن عمـدة القـارى ١۴/٩٣]

**مطر الرحمة والسحاب**

**بذكر مناسبة ترجمة الباب مع الكتاب**

دا بـاب د كتـاب الجهـاد د ابوابـو د عـدد او شـمارې پـه اعتبـار سره شـپږم ٦ بـاب دى امـام بخـاري رحمـه اللـه پـه دې كـې دوه احاديـث ذكـر كـوي چـې دواړه يـې لـه انـس بـن مالـک رضـى اللـه عنـه څخـه پـه سـند سره نقـل كـړي دي، د مذكـور بـاب مناسـبة د كتـاب الجهـاد سره د الشـهيد ..او فضـل الشـهادة پـه كلمـو سره دى چـې دلالـت دى پـه فضيلـت د جهـاد او مقـام د مجاهـد

**حديث ١٢**



په ځای ددې چې ستاسې په اصطلاح همدا ترڅون مو د مقابل لوري له تکرار نقض کیدو ورسته تاسې هم مات بللی وای او ورته عمل مو کړی وای ، هغه دې په ډیره سپین سترګې مو بیا د خپلو بادارانو د درکول شوې طرحې په اساس په مختلفو سیمو کې څو کسان د کوتک په زور د مظاهرو په نوم راټول کړي په مختلفو سیمو کې مو ټولو ته همغه یو قسم په یو متن لیکل شوې شعارونه په لاسونو کې ورکړي او بیا مو دغه ستاسې پلان شویو غونډو ته د ولس د تظاهراتو نوم ورکړی .

لګیا یاست او د ترون د نه ماتیدو زارۍ کوئ .

کاش ! تاسې د شرم په نوم کوم ارزښت پیژندلای .

خو خبره داده چې اوس ټول خلک پوهیږي چې غوا توره ده او شیده یې سپین دي .

انتظار کوئ تاسې د الله عزوجل د دین سره خیانت کړی له دې به نور هم ذلیله شئ باذن الله .



## د دوحې تړون که کفارو سره پیوستون!

الحمد الله الکبیر المتعال و الصلاة و السلام علی الضحوک القتَّال و علی آله و صحبه الأخیار و علی من تبعهم إلی یوم القرار
يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَتَّخِذُوا عَدُوِّى وَعَدُوَّكُمْ أَوْلِيَآءَ تُلْقُونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَقَدْ كَفَرُوا بِمَا جَآءَكُم مِّنَ ٱلْحَقِّ يُخْرِجُونَ ٱلرَّسُولَ وَإِيَّاكُمْ أَن تُؤْمِنُوا بِٱللَّهِ رَبِّكُمْ إِن كُنتُمْ خَرَجْتُمْ جِهَٰدًا فِى سَبِيلِى وَٱبْتِغَآءَ مَرْضَاتِى تُسِرُّونَ إِلَيْهِم بِٱلْمَوَدَّةِ وَأَنَا أَعْلَمُ بِمَآ أَخْفَيْتُمْ وَمَآ أَعْلَنتُمْ وَمَن يَفْعَلْهُ مِنكُمْ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ ٱلسَّبِيلِ [سُورَةُ المُمتَحنَة : 1]

أما بعد:

درنو لوستونکو! د امارت په نوم د طالب ملېشو د تنظیم اوس هر کفر په ډاګه شوي ، او د دوی ناکامه هڅه داده چې خپل هر کفر توجیه کړي ، خپله هره کفري کړنه د شریعت یو حکم وګڼي ، چې د دغه کفري کړنو له ډلې یوه هم کفارو سره د سولې په نوم کفارو ته د تسلیمی تړون دی ، دوی دغه ذلیله کړنه په اسلام او مسلمانانو معامله د حدیبې د سولې سره مقایسه کوي مونږ به هڅه وکړوکه څه هم خبره ډېره ښکاره ده او د هیڅ ډول توجیه ، مقایسې او مقارنې وړ نه ده خو بیا به هم په همدې مقاله کې د حدیبې د مبارکې سولې او په دوحه کې کفارو ته د طالب ملېشو د تسلیمیدو د تړون مقارنه وکړو په دې به رڼا واچوو چې د حدیبې د سولې لاس ته راوړنې څه وې او د طالبانو د تسلېمۍ تړون اسلامي امت ته کوم زیانونه ورسول ، د ډېرى کسانو سره دا پوښتنه ده چې د طالبانو د تسلیمۍ او د رسول الله صل الله علیه وسلم او قریشو ترمنځ دشوې تړون صلحه حدیبې فرقونه واضح شي .

طالبان کفارو ته د تسلېمۍ د تړون د تایید لپاره د حدیبې سوله په دلیل کې وړاندې کوي نو د دوحې د تړون او د حدیبې د سولې په تړاو مو دغه لنډې ،مقارنوي او تحلیلي مقالې ته پام راګرځوم :

لومړې به په مقدمه کې د اسلام د سیاسي نظام په اډانه کې به په دې خبره وکړو چې د حدیبې په سوله ، کومې ستراتیژۍ ( دعوت ، د اسلام قلمرو پراخوالی او جهاد ) ددې په پایله کې پرمختګ وکړ ،که په ټپه ودرید ، پایلې یې څه وې له دغه دریو ستراتیژیو کومه یوه یې د حدیبې په سوله کې تطبیق شوه ؟

لکه څنګه چې تاسې ته مالومه ده چې د اسلام په سیاسي نظام کې کفارو سره سولې او خبرو ته هغه وخت اجازه شته دی چې د درې استراتژیو ( دعوت ، د اسلامی نظامی قلمرو پرمختګ او قتال ) ته زمینه مساعده شي او یا پکی پرمختګ وکړي .

مجاهدینو ورونو ! یوه خبره ضرور ده چې د حدیبیې د سولې او د طالب د تړون بحث ته ورننوځو له هغې مخکې پرې رڼا واچوو تاسې پوهیږئ ،چې یو د اسلام د سیاسي نظام ساختار دی او یو د اسلام د سیاسي نظام تطبیق دی .

د اسلام د سیاسي نظام په ساختار کې خارجي دیپلوماسی تطبیق ته هغه وخت اجازه شوې ، چې دغه دوه شرایط پوره کړو .

۱: یو نظامي قوت او پراخه ملاتړ درلودل

۲: بل قوي داخلي نظام او نظم درلودل .

لکه رسول الله صلی االله علیه وسلم چې کله د حدیبیه په طرف روان شو مدینه کی داخلي قوي او مستقل نظام برابر کړی وه، چې بار بار ټولو کفارو سره هم لاس او ګریوان شوی وه او هم یی په بدر او احد او نورو غزواتو کی کفارو ته د خپل قوت نمایش وړاندې کړی وه .

او همداسې یي یو مجهز فوج هم تیار کړی وه.

د یو مثال په لړ کې به یې واضحه کړو چې په دې مسله تاسې لا زیات دقیق پوهه شئ .

: یو انجینر دې د یو تعمیر نقشه جوړوي ، ډیزاین کوي یي، برابروي یي ،د تعمیر ټولې خواوې سنجش کوي، څېړي یي او طرحه کوي یي .

اوس که ما او تا دا نقشه ووینو او خبره پرې وکړو، ټولې خواوي یی وڅیړو، نو هیڅ عیب په کې په ظاهر کې نه وینو .

له مختلفو اړخونو دا یو کامل نقشه ده د طرحې ، قوت ، ساختمان ، مقاومت او ټولو اړخونو له نګاه څخه مکمل ده . اوس نو ددې نقشې د عملي تطبیق لپاره لومړې څه شي ته ضرورت دی ؟

: بودیجې ته .

اوس نو پوهه شو چې نقشه کې هیڅ عیب نه شته ،خو خپله نه تطبیقیږي یانې ددې غوره نقشې تطبیق بودیجې پورې تړاو لري، چې بودیجه نه وي ، نو دا ښه او غوره نقشه به همداسې بیکاره پرته وي ..

اسلام سیاسي نظام کی هم همدا خبره ده، چې ته هغه وخت د سولی خبری کولی شې، چې تا یو بودیجه عیاره کړې وي، چې دا بودیجه د اسلام سیاسي نظام کی دوه بخشونه لري: قوت(فوج) مستقل نظام چې د هیچ کافر اثر وربانذی نه وي، یعنې اسلام یو خپل قوت تر لاسه کړی وي او هر بخش کې مستقل نظام ولري.

نو څکه هغه وخت ما او تاته اسلام اجازه راکوي چې زه او ته خارجي دیپلوماسي مطرح کړو او یا د دریو ستراتیژیو د تطبیق مرحله شروع کړو چې ما تا او د بودیجې دغه دوه شرایط پوره کړي وي چې هغه نظامي ملاتړ او داخلي نظم دې .

اوس راځو د سولې اړوند مسلې ته مختصر کتنه کوو

### د حدیبیې صلحه

لومړې باید په دې پوهه شو، چې کفارو سره سوله کول ، اصلي هدف دا نه دی ،بلکې دا زموږ او ستاسې اهدافو ته د رسیدو یوه وسیله او لاره ده ، یانې هغه وسیله ده چې موږ او تاسې اصلي هدف ته پرې رسیږو ، یانې د مجاهدینو دا دومره زحمتونه ، ولږې ، تندې ، بې کورۍ ، تکلیفونه ، زندانونه ، زخمونه او شهادتونه او نور ، ډول ډول کړاونه ددې لپاره دي چې اخر کې دې مجاهدین کفارو سره سولې ته ورسیږي ؟

نه ددې قربانیو او کړاونو د تیرولو هدف دا نه دی .

د اسلام په سیاسي نظام کې کفارو سره سوله یو اضطراري حالت دی ، یو موقت حالت دې اصل هدف دا نه دی که زه او ته کفارو سره یو وخت سوله کوو نو ددې لپاره یې کوو چې له دې لارې خپل اصلي اهداف ترلاسه کړو زما او ستا اصلي هدف څه دی ؟

د اسلام د سیاسي نظام په ساختار کې کلي اهداف د مجاهدینو د کلمې لوړاوي ، د اسلامي امت او د جهاد د لوړو منافعو او ګټو ساتل او لاس ته راوړل دي .

د اسلام په سیاسي نظام کې سوله اصل نه دی ، یانې یو داسې رکن نه دی چې ددې په نه کولو زما او ستا اسلام نیمګړی دی او یا ما او تا اصلي هدف ته نه شو رسیدلای .

طالبانو دې خبرې ته ډېر زور ورکړی چې زمونږ سوله د نبي علیه السلام د مبارکې صلحې حدیبیه په څیر ده ، طالبان خپلې سولې ته شرعي رنګ ورکوي او ډېر په تکلف سره دا ثابتول غواړي، چې امریکایانو سره د سولې په نوم روانه پروسه د اسلامي نظام د قیام تمثیل دی، خو حقیقت دا دی چې دا



سوله سراسر په غیر مشروعه بنیادونو باندې ولاړه ده او د ملت د قربانیو په سر سودا ده.

ورونو! اسلام یو مکمل ظابطه حیات الله عزوجل مونږ ته رالیږلې، چې تر قیامته د هرې یوې لویې او وړې قضیې بیان پکې په احسنه توګه موجود دی، داسې جامع کلیات شریعت بیان کړي چې د مسائلو هیڅ فرد ترې خارج نه دی ، الله عزوجل دا اعلان کړی دی:
{الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا} [المائدة: 3]

ژباړه: نن ورځ ما ستاسې لپاره ستاسې دین پوره کړ او په تاسې مې خپل نعمت تمام کړ، او اسلام مې ستاسې لپاره دین خوښ کړ.

تر دې پورې چې مشرکانو به صحابه وو ته طعنه ورکوله چې ستاسې رسول تاسې ته د هر څیز بیان کوي تر دې چې د استنجا چل هم درته ښايي:
عَنْ سَلْمَانَ ، قَالَ : قِيلَ لَهُ : قَدْ عَلَّمَكُمْ نَبِيُّكُمْ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلَّ شَيْءٍ حَتَّى الْخِرَاءَةَ (وَهُمْ يَسْتَهْزِئُونَ بِهِ في رواية مسند أحمد)قَالَ : فَقَالَ : أَجَلْ لَقَدْ نَهَانَا أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ لِغَائِطٍ... صحيح مسلم

ژباړه: سلمان فارسي وايي، هغه ته وویل شول: تاسې ته ستاسې نبي علیه السلام د هر څه ښودنه کړې، تر دې چې د اودس ماتي چل يې درته هم ښودلی (بل روایت کې راځي چې هغوی ټوقې کولی) هغه ورته وفرمایل: هو، یقینا هغه صلی الله علیه وسلم مونږ د اودس ماتي پر وخت قبلې طرف ته مخ ګرځولو څخه منعه کړي یو.

هغه کومه مسئله ده چې اسلامي شریعت کې نده بیانه شوی، راځئ د ابو ذر رضي الله عنه څخه یې واورو:

عَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: تَرَكَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَمَا طَائِرٌ يُقَلِّبُ جَنَاحَيْهِ فِي الْهَوَاءِ، إِلَّا وَهُوَ يُذَكِّرُنَا مِنْهُ عِلْمًا، قَالَ: فَقَالَ: صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَا بَقِيَ شَيْءٌ يُقَرِّبُ مِنَ الْجَنَّةِ، ويُبَاعِدُ مِنَ النَّارِ، إِلَّا وَقَدْ بُيِّنَ لَكُمْ». المعجم الكبير للطبراني.

ژباړه: ابوذر رضی الله عنه وایی: مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم پداسې حال کې پریښي یو چې نشته یو مارغه چې په هوا کې وزرې اړوي راړوي مګر هغه مونږ ته د ده علم هم بیان کړی. نبي علیه السلام وفرمایل: ندی پاتې هیڅ یو شی چې جنت ته مو نږدې کوي او د جهنم څخه مو لرې کوي، مګر تاسې ته بیان شوی دی.

همدا خبره قرآن کریم کې رب فرمایلې ده: وَمَا مِنْ دَابَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ مَا فَرَّطْنَا فِي الْكِتَابِ مِنْ شَيْءٍ ثُمَّ إِلَى رَبِّهِمْ يُحْشَرُونَ. [سورة الأنعام:38]

ژباړه: په ځمکه کې خوځیدونکې کوم ساکښ او په هوا کې په وزرونو سره الوتونکي مارغه، دا ټول همدا ستاسې په څیر انواع او ډولونه دي. مونږ پدې کتاب کې د هیڅ شی کمی ندی کړی، بیا به هغو خپل رب ته ورغونډیږي.

غرض مې دا دی چې کوم دین په اړه رب لایزال دا اعلان کړې وي، چې کامل دی، کوم دین کې چې د استنجاء مسائل په تواتر سره ثابت وي، کوم دین کې چې په هوا کې د مارغانو مسائل هم بیان شوي وي، نو آیا هغه دین کې به د نظام چلولو مسائل او قوانین په کامله توګه نه وي بیان شوي ؟

عزتمندو! خامخا بیان شوي دي، نو مونږ تاسې به د طالبانو هر سیاسي فعالیت د شریعت تلې ته اچوو، که برابر و، ډیره ښه ده او که برابر نه و، نو دغه عمل او دغه فعل به مردود وي.

سوله په شریعت محمدي کې په اجماع د مسلمانانو سره روا ده، خو په خپلو معتبرو شرطونو سره. الله عزوجل فرمايي: ({وَإِنْ جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا} [الْأَنْفَال: 61])

کچیرې هغوی (کافر) سولې ته غاړه کیږدي نو ته هم ورته غاړه کیږده.

نو د طالبانو سوله به هم د کتاب او سنت په تله باندې وتلو.

تنبیه: دا خبره یاد ساتل پکار دي چې طالبانو کې لسګونه نواقض موجود دي، نو که دا یوه سوله یې په شریعت برابره هم شي، نو هیڅ فائده نه ورکوي. دوی پرې نه مسلمانیږي ،خو د دومره نواقضو سره د طالبانو څخه هیڅکله د شرعي سولې تمه هم نه کیږي.

زمونږ دعوه دا ده چې د طالبانو سوله غیر شرعي بلکې د کفارو سره موالات، ارتداد او تسلیمي ده، او د نبي علیه السلام مبارکې سولې سره زیات توپیرونه لري، ځینې یې مونږ د الله په توفیق سره ذکر کوو.

*د هجرت په شپږم کال د ذوالقعدې په میاشت کې رسول الله صلی الله علیه وسلم خوب وکتلو چې عمره به کوي ، په دې اړه یې د صحابه و سره مشوره وکړه ، صحابه خوشاله شول ، بس د عمرې په نیت یې مکې ته حرکت وکړ ، د سولې په نیت یې حرکت نه دی کړی ، یانې داسې نه وه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ګنې له مدینې څخه د سولې په نیت روان شو او له پیله یې غوښتل چې لاړ شي او هلته قریشو سره سوله وکړي ، نه ، بلکې نیت یې عمره کول وو، ځکه یې د عمرې په نیت حرکت وکړ، چې په مدینه کې شته منافقین ورسره په همدې خاطر ولاړل نه شول ، هغوی فکر کاوه چې دوی سره اسلحې دي دا عمرې ته نه ځي د جنګ نیت لري ، د مکې په قریشو ځان خرابوي ، که چرته رسول الله صلی الله علیه وسلم د سولې په نیت حرکت کړی وي نو بیا به خبره ښکاره وه او بیا به منافقینو ته همدا مالومات شوی و ، چې راځه نو هسې هم سوله کوي ته به هم لاړ شي د مسلمانانو منځ کې به دې حېثیت لوړ شي ، هغه د چا خبره د قصاب په دوکان نه بلکې د حلوایي دوکان ته تلل دي .

طالب ملېشې چې اکثره د خپلو کړنو لپاره کوم دلایل وړاندې کوي فقط عناوین وړاندې کوي، نور یې جزیاتو ته نه ورځي لکه خپل د تسلیمي تړون د سولې حدیبیې سره مقایسه کوي خو نور د حدیبیې د سولې جزیات او شرایطو ته نه ورننوزي ځکه که ورننوتل خپله بیا همدا د حدیبیې سوله د دوی په دې تړون د رد ستر دلیل دې دوی فقط خلکو ته په سترګو کې د خاورو وراچولو په خاطر همداسې عمومي وايي چې د حدیبیې په سوله کې رسول الله صل الله علیه وسلم د مشرکینو ځینې شرایط منلي و، نو مونږ ته هم لازمه ده چې د کفارو شرایط ومنو .

نو راځئ! مخکې له دې چې دغه بحث ته ننوزو لومړې به د حدیبیې په سوله وغږیږو ان شاءالله .

د حدیبیې سوله د هجرت په شپږم کال وشوه ، لکه مخکې مو وویل چې رسول الله صل الله علیه وسلم له مدینې څخه د عمرې په نیت وخوځید، کله چې مکې ته نیږدې د (صنعې ) مقام ته ورسید نو په همدغه ساحه کې د رسول الله صل الله علیه وسلم اوښه (قسوه ) پریوتله ،صحابه و کوشش وکړ چې اوښه اوچته کړي خو ونه توانیدل فکر یې وکړ چې ستړې شوې ده نو صحابه و ، وویل اوښې ته نور مزل سخت شوې او ستړې شوې ده نو رسول الله صل الله علیه وسلم ورته وفرمایل :

ژباړه : اوښې ته مزل نه دې سخت شوې او نه یې دا عادت دی ، بلکې دا هغه ذات بنده کړې ده چې فیل یې بند کړې و)

ددې مقصد دا و چې الله عزوجل نه غوښتل چې نبي علیه السلام له دې ځایه نور مخ ته لاړ شي ، د نبي علیه اسلام او ابرهه ترمنځ یې تشبه مقصد نه ده ، مکې ته له تللو یې لکه څنګه چې فیل منعه کړې و، دغسې یې دا اوښه هم منعه کړه .

بیا نبي علیه السلام اوښه پاڅوله او حدیبیې ته یې روانه کړه او دوی ټول بیا حدیبیه کې راټول شول ، د بخاري په یو روایت کې دي چې نبي علیه

السلام يوه خبره وكړه ويې فرمايل : والذي نفسي بيده لايسالون ...
ژباړه : قسم په هغه ذات چې زما روح يې په لاس كې دې ، دوئ به له ما څخه د داسې يو خصلت غوښتنه نه كوي چې په هغې سره دوئ د الله تعالى د محارمو تعظيم كوي ، د بيت الله او د حرم تعظيم كوي ، مگر زه به يې ورسره منم .

نو نبي عليه السلام د اوښې له پريوتلو دا خبره فهم كړه چې مكې ته بغير له سولې نه شي داخليدلې نو ځكه يې دا خبره وكړه ، كله چې حديبيه كې راټول شول نو د خذاعه له قبيلې ورته څه خلك لومړي راغلل ، دغه خلكو په جاهليت كې د بنو هاشمو سره دوستي تيره شوې وه ، په دغه وفد كې يو كس و چې نوم يې بديل بن ورقه الخذاعي و،همدغه نبي عليه السلام د مكې والا لپاره پيغام وركړ ، ځكه د مكې خلك په همدې نيت راټول شوي و ، چې مكې ته د نبي عليه السلام د ننوتلو مخه ونيسي ، د طايف والا ، غطفان والا يانې ټول راټول شوي و ، نبي عليه السلام بديل ته وويل چې مكې والاو ته ووايه چې موږ د جنگ په نيت نه يو راغلي بلكې د عمرې په نيت راغلي يو ، قريش هسې هم ضعيفه شوې دي ، كه د دوئ خوښه وي نو زه به دوئ سره سوله وكړم ، ما دې پريږدي چې د نورو مشركينو سره حساب وكړم ، او كه داسې نه كوي نو قسم په هغه ذات چې زما روح يې په لاس كې دې زه به په دې دين دوئ سره تر مرگه وجنگيږم ، بُديل د مكې خلكو ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم پيغام يووړ ، د مكې بيوقوفانو د پيغام اوريدل نه غوښتل خو هوښيارانو يې وويل : پيغام يې راواوروه بيا بُديل ورته وويل : رسول الله صلى الله عليه وسلم وايي چې كه تاسې ماسره تر يو وخته سوله وكړئ او ما پريږدئ چې د نورو مشركينو جنگ ته فارغ شم او كه داسې نه كوئ، نو قسم په الله چې تاسې سره جگړې ته تيار يم .

نو د قريشو په منځ كې عروه بن مسعود الثقفي رض الله عنه چې هغه وخت يې ايمان نه و راوړی وويل : دا خو د خير خبره ده ، ورسره يې ومنئ او ماته اجازه راكړئ چې زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم څنگ ته ورشم . بيا ورته مشركينو اجازه وركړه ، چې كله د نبي عليه السلام څنگ ته راغی نو نبي صلى الله عليه وسلم دې ته هم همغه خبرې وكړې كومې يې چې بُديل ته كړې وې ، قريش پوهيدل چې دوئ د جنگ ورتيا نه لري.

نو سوله هلته ممكنه ده چې دواړه لوري په قوت كې يو شان وي ، كه چرته كمزوری له زورور سره سوله كوي نو زورور به پرې خپل شرطونه خامخا مني .

نو قريشو ته دا مالومه وه چې اوس مسلمانان هغه پخواني مسلمانان نه دي بلكې اوس د نبي عليه السلام قوت له دوئ زيات دی ، دوئ د نبي عليه السلام د لښكرو سره د هجرت په دويم ، دريم او څلورم كال هم جنگونه كړي و، د مسلمانانو د قوت اندازه ورته شوې وه او ددې جگړو په لړ كې دوئ كمزوري شوي و ، ځكه يې نو له مجبورۍ سولې ته غاړه كېښوده .

مسلمانان همغسې په خپل قوت د الله په فضل مطمين و ، هغه وخت يې هم ټيټه خبره نه كوله ، له دې هم د مسلمانانو د هغه مهال لوړ مورال او قوت معلوموليي شئ ،كله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم عثمان رضى الله عنه وليږه ، چې هلته قريشو سره خبره وكړي ، كله چې عثمان رضى الله عنه لاړ او لږ وخت يې هلته زيات تير كړ نو دلته د صحابه ترمنځ دا گنگوسې شوه چې عثمان رضى الله عنه يې شهيد كړی ، نو داسې نه شوه چې بس خبره ختمه شوه او صحابه ويريدل ، چې ياره موږ خو كمزوري يو ، عمرې ته راغلي يو ، بيا به بل كال ته په قوت سره په پوره تياري سره راشو ، بس ځئ بيرته وگرځئ ،نه ، بلكې د الله رسول صلى الله عليه وسلم صحابه راټولوي او په مرگ ترې بيعت اخلي ،

لَقَدْ رَضِيَ اللَّهُ عَنِ الْمُؤْمِنِينَ إِذْ يُبَايِعُونَكَ تَحْتَ الشَّجَرَةِ فَعَلِمَ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَنزَلَ السَّكِينَةَ عَلَيْهِمْ وَأَثَابَهُمْ فَتْحًا قَرِيبًا ﴿18﴾

يانې په مرگ بيعت اخلي چې په دې بيعت يې الله عزوجل راضي او خوشاله كيږي ، داسې نه ده چې عثمان رضى الله عنه پريږدي او دوئ ځي، چې ځه بل كال ته به سره له امادگۍ راشو ، نه بلكې ټول په مرگ بيعت كوي چې يا به د عثمان انتقام اخلو او يا به پرې ټول ځانونه شهيدانوو.

خو د طالبانو نه تپوس وكړئ چې د صلحې جريان او د صلحې نه روسته يې همدې ماتې امريكار څو ځله په سر سر وويشتلي او څومره يې درته مرداران كړل ته د كوم خپل دوست او ملگري لپاره هم تندی كفارو ته تريخ كړه كنه ؟

ورونو ! دلته مو دې خبرې ته پام راگرځوو ،چې د طالبانو خبرې امريكايانو سره دا خو بيخي په صلحه حديبه باندې نه قياس كيږي ، دا خبرې او ترون هغه پشنهاد باندې قياس كيږي ، كوم پشنهاد چې په لومړيو كې په مكه كې مشركينو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وكړ .



كله چې مشركين د رسول الله صلى الله عليه وسلم ورځ تربلې زياتيدونكي نفوذ او قوت څخه په ډار او وارخطايي كې راغلل كله يې چې هره وسه تمامه كړه او زور يې ونه رسيده ، نو د قريشو يو مشر عتبه بن ربيعه د قريشو د مشركينو په استازولۍ رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغی ، تر څو ورته ځينې وړانديزونه وكړي ، رسول الله صلى الله عليه وسلم باندې خپل زهر وچلوي د دنيا مال او متاع ،واک ،زر ښځو او نورو غولونكو تمو په گرداب كې يې راگير كړي او له خپل مسوليت او دعوې څخه يې راوگرځوي همغه و چې عتبه راغی ، د رسول الله صلى الله عليه وسلم په وړاندې كيناست ورته يې وويل : وراره !

ته خو زموږ په منځ كې د اوچتې او قدرمنې كورنۍ د محترم او لوړ نسب خاوند يې ، تا خپل قوم ته يوه لويه مسله راوړې ده او په دې د ټول قوم په منځ كې جنجال جوړ كړی ، بې اتفاقه كړې دې دی ، د دوئ دين او معبودان توهينوي عيب پرې پورې كوې ، د خپلو پلرونو دين او عادات دې پريښي ، نو واوره زه درته يو څو پيشنهادونه لرم ، فكر پرې وكړه ممكن كوم يو دې خوښ شي او ته يې ومنې او دا شخړه ختمه شي ، رسول الله صلى الله عليه وصلم ورته وفرمايل :قل يا ابا الوليد اسمع . وايه ابوليده اورم .

عتبه وويل : وراره كوم دعوت چې تا اسلام ته شروع كړی ، او كومې هلې ځلې چې كوې ، او زموږ په منځ كې دې مشكلات راولاړ كړي ، كه له دې څخه دې مقصد د مال ترلاسه كول وي، نو موږ به درته دومره مال او دارايي راټوله كړو چې له موږ ټولو به ته زيات مالداره او شتمن شې ، او كه له دې لارې غواړې چې مشر شې نو موږ به دې سمدستي خپل مشر وټاكو او هيڅ فيصله به ستا له مشورې پرته نه كوو، د مكه مشر به ته شې او واك د مكې به تاسره وی كه پاچاهي غواړې نو پاچا به دې كړو ، او كه چيرې دا څه چې درته راځي جن يا پيری وي ناروغه يې نو علاج به دې وكړو ، كه غواړې د خپل قوم ښايسته او غوره ښځه به دركړو ، خو دا كومه دعوه چې لرې ، دا كوم مشن چې دې روان كړی له دې تير شه .

كله چې عتبه خبرې ختمې كړې رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وويل ستا خبرې خلاصې شوې هغه ورته وويل : هو .

نو رسول الله صل الله عليه وسلم ورته وفرمايل : ( فاسمع مني ) اوس



ماته غوږ شه .
عتبه وویل غوږ مې دی .
رسول الله صلی الله علیه وسلم خبرې داسې پیل کړې :
حمٓ (1) تَنزِيلٌ مِّنَ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ (2) كِتَابٌ فُصِّلَتْ آيَاتُهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ (3) بَشِيرًا وَنَذِيرًا فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ [سُورَةُ حٰمٓ السجدة/فُصِّلَت : 1- 3]

﴿حم. (1) دا (قُرآن) د خورا مهربان او پوره رحم لرونکي خدای له خوا نازل کړه شوی دی؛ (2) یو داسې کتاب چې ایتونه یې په تفصیل سره بیان کړای شوي دي او د عربي ژبې قُرآن دی د هغو خلکو لپاره چې علم لري؛ (3) زېری ورکوونکی او وېروونکی دی. خو له دغو خلکو څخه زیاترو ترېنه مخ واړوه او غوږ ورته نه نیسي.﴾

رسول الله ﷺ قرانکریم تلاوت کوي او عتبه ورته چوپ ناست دې ، غوږ یې ورته ایښی ، لاسونه یې شاته ایښي او تکیه یې وربانديې کړې ده ، رسول الله صل الله علیه وسلم د سجدې آیات تلاوت کړ، سجده یې وکړه او بیا یې وویل : ابوالولیده وادې وریدل ؟

اوس خپله فکر وکړه ته پوهه شه او کار دې ، عتبه پاڅېد خپلو ملګرو ته ورغې ملګرو یې وویل عتبه چې له موږ په مخ تللی و په هغې نه دی راغلی ، ترې ویې یوښتل څه کیسه ده ، هغه ورته وویل : قسم په الله ما داسې خبرې واوریدې، چې په ټول عمر کې مې نه وې اوریدلې ، هغه نه سحر و ، نه شعر و ، نه جادو او مداریتوب و . ای قریشو !

محمد په خپل حال پریږدئ ......صلي الله علیه وسلم

همدا راز د قریشو مشران ابو طالب ته راغلل او هغه یې مجبور کړ چې خپل وراره وپوهوي چې د دوی له دښمنۍ لاس واخلي ، تره یې ورته وایي مشران راغلي و او داسې ...داسې .. غوښتنې یې درلودې، دا خبره هم وشوه چې ته زموږ اله و ته بد او رد مه وایه مونږ به ستا رب ته نه وایو او یا به یو کال ستا د رب عبادت وکړو یو کال ته زمونږ د باطلو الهه وو عبادت وکړه او یا به عقیدوي ازادي وي، هر څوک چې هر کار کوي نو یو به د بل کار کې مداخله نه کوو، نو محمد صلی الله علیه وسلم ورته وایي: قسم په الله اې تره ! که لمر په یوه لاس او سپوږمۍ په بل لاس کې راکړې نو له دې دعوته او له دې مشن او مبارزې به لاس په سر نه شم

هو !

د دوحې تړون د مشرکینو د همغې غونډې سره مقایسه کیږي د امریکا په مشرۍ د نړۍ کفارو او طواغیتو له طالب مشرانو وغوښتل چې دا څه د شریعت ، شریعت نارې وهئ ، موږ ته مالومه ده چې تاسې خپله په شریعت برابر نه یاست ، راځئ له دې تشو نارو هم تیر شئ ، ولې هم ځان او هم موږ ستړي کوئ ستاسې چې څه مقصد دې په هغې موږ پوهیږو ، تاسې د کابل واک غواړئ، موږ به مو په یوه میاشت کې دننه د کابل حاکمان کړو ، وسلې ، عرادې ، تجهیزات او ټول امکانات به په واک کې درکړو ، مزې به مو وي ، ښځې به هم خه پریمانه وي ، په مجلسونو کې په تلویزونونو کې او په نورو پټو او ښکاره ملاقاتونو کې به تاسې د ښه ښایسته ښځو سره مشغول شئ ، هره هفته به درته په میلونونو ډالر هم درلیږو ، کفري او طاغوتي هیوادونو ته به زموږ او ستاسې د دوستۍ په لړ کې خه ازاد سفرونه کوئ دلته به زموږ په ساحلونو او هوټلونو کې د ژوند له رنګونو خوند واخلئ ، هیڅ قسم بندیز به دربانديې نه وي ، نومونه به مو له تورو لیستونو څخه وباسو ، د سفر بندیزونه به دربانديې ختم کړو ، په رسمي شکل به مو خپل ملت کې ومنو .

تاسې فقط د اسلام او شریعت ددې تش په خوله د اخستونکو شعارونو او نومونو څخه هم تیر شئ دا څه جنجال مو جوړ کړی ، بس ټول به سره یو ملت شو ، یو به مو قانون وي، یو به مو هدف وي او یو به مو دریځ وي ، د بین الملل په اصولو به سره راجمعه یو او دا شته ټول مشکلات به مو هوار شي ،نه به تاسې زموږ کار کې کار لرئ او نه به موږ ستاسې کار کې کار لرو ، د یو بل امن به ساتو ، زموږ دوست به ستاسې دوست وي او زموږ دښمن( اسلامي دولت ) به ستاسې دښمن وي او په شریکه به یې د محوه کولو لپاره کار کوو.

همغه و چې د طالب مشرانو خولې له اوبو ډکې شوې او دا هر څه یې ورسره ومنل ، له خپلې دعوې ، دین، ایمان ، حیا ، غیرت څخه ورته تیر شول ، د اسلامي امت په وینو او اوښکو یې معامله وکړه او اوس نو همغه مشرکینو سره شوې تړون دې چې د عملي کیدو او تطبیق په لار کې طالب له مختلفو مرحلو تیریږي .

نو لنډه دا چې طالب ادرس غلط کړې د طالب تړون د حدیبیې د سولې د تړون سره نه مقایسه کیږي ، بلکې د مشرکینو له لورې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د پشنهادونو او وړاندیزونو هغه تړون دې ، چې رسو ل الله صلی الله علیه وسلم دا هر څه رد کړل او ورته یې انکار وکړ، خو طالب دا هر څه په پټو سترګو ومنل او عملاً یې ټوله نړۍ ګوري .

چې مشرکینو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته ددې هر څه وړاندیزونه وکړل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته چورلټ انکار وکړ ، خو طالب ملېشو دا هر څه په پټو سترګو ومنل .

لکه مخکې مو چې ذکر کړل چې سوله د اسلام سیاسي نظام کی د زورور او کمزوري تر منځ نه وي ، بلکې چې په قوت کې سره مساوي وي او یا د اسلام قوت اوچت وي ، نو که زورور سره سوله وي هغه به دربانديې خپل ټول شرایط د سولې په نوم مني . لکه زورورې امریکا چې په ماتو شویو او له خپلو دعوو او کړیو وعدو په شا شویو، طالب مشرانو ومنل .

طالب مشران هم سره ددومره انحرافاتو بیا هم ددوی او د مشرکینو ترمنځ د پشنهاداتو د منلو او له خپلو دعوو له تیریدو د تسلیمۍ دا تړون د حدیبې په تړون قیاس کوي او وایي دلته هم موږ د مشرکینو ځینې شرایط منلي ځکه چې په حدیبیه کې هم رسول الله صلی الله علیه وسلم د مشرکینو شرایط منلي و .

اوس راځو دې ته چې هغه شرطونه چې د حدیبې په سوله کې پرې موافقه شوې وه په هغې شرطونو کې د مشرکینو د دین د منلو څه خبره وه ؟ یا زموږ د دین خلاف څه خبره په کې وه ؟

یانې د شریعت خلاف کوم شرط په کې و ؟

په دې شرطونو به لږه رڼا واچوو

کله چې سهیل ابن عمر راغې ، چې دا اخري استازی و ، ددې لپاره راغې چې د سولې فیصله ولیکي ، نو کله چې رسول الله صلی الله و علیه وسلم ولید نو ویې فرمایل : ستاسې کار اسان شو ، نبي صلی الله علیه وسلم به په ښایسته نومونو نیک فالي کوله .*

د حدیبیې د سولې یو شرط دا و ، چې تاسې به موږ بیت الله ته پریږدئ چې موږ طواف وکړو ؟

نو سهیل ورته وویل چې : نه تاسې به اینده کال کې راځئ هسې نه عرب داسې فکر وکړي ، چې تاسې په موږ په زور راداخل شوئ.

بل شرط دا و چې که بل کال ته عمرې ته راځئ نو د عربو د عادت موافق د یو مسافر هومره اسلحه به له ځان سره هر کس راوړي ، توري به ورسره په پوخونو کې وي او درې شپې به تیروئ .

نبي علیه السلام ورسره په دې شرطونو موافقه وکړه نو دا شرطونه هم د مشرکینو په دین کې نه و ، یانې دا یوازې د سولې یو شرط و د هغوی د دین منل نه دي ،

بل شرط دا و چې که څوک له نبي علیه السلام څخه مشرکینو ته راشي هغه به ورته بیرته نه واپس کوي او که د مشرکینو څخه څوک راشي نبی علیه السلام ته ، نو هغه به ورته واپس کولاې شي .

ددې شرط د منلو وجه د مسلم په حدیث کې داسې بیان شوې ، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي : څوک چې زموږ څخه د دوی خواته

ورغي ياني مرتد شو نو الله عزوجل دې هلاک کړي ، او څوک چې د دوی څخه موږ ته راغی نو الله به ورته څه لار خلاصه کړي ، ياني که موږ يې ورته واپس کړو هم نو الله عزوجل به ورته څه لار خلاصه کړي ، چې همدغسې وشول ، چې کوم کس به نبي عليه السلام مکې ته واپس کاوه نو هغه به هلته د هغوی په تاوان تماميده ، هلته به يې دعوت کاوه ، د اسلام حقانيت به يې بيانوه او نور خلک به يې ترغيبول ، ابو بصير چې کله نبي عليه السلام واپس کړ او هغه خپل جنګي معسکر خلاص کړ ، نو چا چې به هم د مکې والاو څخه اسلام قبلاوه نو د ابو بصير سره به يو ځای کيدل ، نو مکې والا مجبور شول چې بيرته رسول الله صلی الله عليه وسلم ته راغلل چې دا خو موږ ته بل درد سر پيدا شو ، بس له ابو بصير څخه تاسره ښه دي څوک چې راځي مه يې وآپس کوه ،ځکه نبي عليه السلام خو دوی سره سوله کړې وه جګړه يې ورسره نه کوله خو دغه مومنان چې د سيف البحر په ساحه کې را جمعه شوي و ، دوی به د مکې والاو قافلې لوټ کولې او هغوی ترې سم تنګ و ، هسې کلارې نه و ناست ، بلکې د سولې له تړونه هم بهر و او خپل کار يې روان ساته ، ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم دا وړاندوينه کړې وه چې له مکې څوک موږ ته راځي او موږ يې واپس کوو نو هغې ته به الله بله لار خلاصوي ، نو هغوی ته يقينې هم الله دا لار خلاصه کړه چې ابوبصير بيل محاذ خلاص کړ ، هلته به دا ټول راغلي نوې مسلمانان ورتلل او هغه سره به راجمعه کيدل او د مشرکينو په څټونو به سپريدل ، نو په دې شرطونو کې يوه خبره هم داسې نه وه چې د مشرکانو د دين موافق وي او يا هم زموږ د شريعت مخالف وي ، له دې سولې دا هم ثابتيږي چې قريش په دغه وخت نسبت مسلمانانو ته ضعيف و ځکه رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته د دوه خبرو اختيار ورکړ چې يا به سوله کوئ او يا جنګ ته اماده شئ .

طالب خو نه يوازې دا چې نور د جهاد نه کولو او په ټولو کفارو باندی د بېز نه کولو تړونونه ورسره امضاء کړي دي بلکه هغه نور وطني او طاغوتي تنظيمونه چې هم دوی سره يو ځای ول او د پاکستان د ازادۍ په نوم يې له ډيرو خلکو قرباني واخيستله هغوی هم راوستل مرتدينو سره يې کينول ،رسول الله صل الله عليه وسلم که يو طرف سوله وکړه بل طرف د ابوبصير رضی الله عنه جبهه خلاصه وه هلته مسلمانان ورتلل او منظم کيدل او په مشرکينو يی شپه او ورځ يوه کړې وه ، رسول الله صل الله عليه وسلم خو داسې ونه کړل چې ابو بصير يې منعه کړ، طالب خو يو چاته هم وخت نه ورکوي چې يو کافر ته په بده سترګه وګوري او يا د دوی له ظلمونونه وروتښتي ، دوی خو له ځانونو د کفارو مليشی او عسکر جوړ کړي دي او د کفارو په نيابت کفارو سره جنګيدونکو اسلامي خلافت سربښندونکو غازيانو سره عملاً د همدې هدف لپاره په جګړه بشکيل دي چې هم کفار او د کفارو ګټې او سرحدات وساتي .

الغرض:

بله دا چې رسول الله صلی الله عليه وسلم ددې شرطونو دومره اهتمام نه دی کړی ، بلکې د الله د امر پابندي يې کوله دليل دادی چې : کله د عقبه ابن معيت لور امې کلثوم مدينې ته هجرت وکړ ، نو د سولې د شرطونو په اساس په کار وه چې دا زنانه بيرته واپس شوې وی ، ځکه ورپسې ورور يې وليد بن عقبه راغلې و ، نو دغه وخت دا ايات نازل شو :

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوٓا إِذَا جَآءَكُمُ الْمُؤْمِنَٰتُ مُهَٰجِرَٰتٍ فَامْتَحِنُوهُنَّ اللَّهُ أَعْلَمُ بِإِيمَٰنِهِنَّ فَإِنْ عَلِمْتُمُوهُنَّ مُؤْمِنَٰتٍ فَلَا تَرْجِعُوهُنَّ إِلَى الْكُفَّارِ لَا هُنَّ حِلٌّ لَّهُمْ وَلَا هُمْ يَحِلُّونَ لَهُنَّ وَءَاتُوهُم مَّآ أَنفَقُوا وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ أَن تَنكِحُوهُنَّ إِذَآ ءَاتَيْتُمُوهُنَّ أُجُورَهُنَّ وَلَا تُمْسِكُوا بِعِصَمِ الْكَوَافِرِ وَسْـَٔلُوا مَآ أَنفَقْتُمْ وَلْيَسْـَٔلُوا مَآ أَنفَقُوا ذَٰلِكُمْ حُكْمُ اللَّهِ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ وَاللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ [سُورَةُ المُمتَحنَة : 10]

اې مومنانو! کله چې مومنې ښځې هجرت وکړي، تاسي ته راشي، نو (د هغو د مسلمانۍ) څېړنه وکړئ او د هغو د ايمان په حقيقت باندې الله ښه پوهيږي ، بيا کله چې تاسي ته معلومه شي چې هغوی مؤمنې دي، نو کافرانو ته يې بيرته مه ليږئ؛ نه هغوی د کافرانو لپاره روا دي او نه کافران د هغوی لپاره روا دي. د هغو کافر مېړونو چې کوم مَهر هغو ته ور کړئ و، هغه هغو ته بيرته ورکړئ. او له هغو سره په نکاح کولو کښې پر تاسي څه ګناه نشته کله چې يې مَهر ورکړئ. او تاسي په خپله هم کافري (ښځې) پخپله نکاح کښې مه ساتئ، کوم مَهر چې تاسي خپلو کافرو ميرمنو ته ورکړی ؤ، هغه بيرته ځنې وغواړئ. او کوم مَهر چې کافرانو خپلو ميرمنو ته ورکړی ؤ، هغوی دې هغه بيرته وغواړي. دا د الله حُکم دی، هغه ستاسي تر منځ فېصله کوي او الله د پوهې او حکمت څښتن دی.

نو نبي عليه السلام د الله په دې امر عمل وکړ او زنانه يې واپس نه کړه ، قريشو هيڅ حرکت ونه کړ ،نو دا هم په دې دليل شو چې قريش ضعيف شوي و ، خو بيا هم د نبي عليه السلام دليل ورته برابر و ، ځکه حق يې هم نه جوړيده ، په تړون کې داسې ليکلې و ( لاياتيک من الرجل ...سړې يې ليکلې و ، د زنانه کومه تذکيره په کې نه وه ، د مسلمانانو د قوت دليل دا هم کيدای شي چې کله قريشو لوز مات کړ او د خذاعه قبيلې په مقابل کې يې د بنو بکر قبيلې سره کومک وکړ ، نو نبي عليه السلام په دوی غزا وکړه .

راځئ ! اوس د امريکا په تر ټولو ستره استخباراتي هډه کې د امريکا په مشرۍ د نړۍ کفارو ته د سولې په نامه د طالب د تسليمۍ د تړون مادې د نبوي او شرعي سولې د شرطونو سره مقايسه او مقارنه کړو.

لومړې : د نبي عليه السلام اوربندونه د طالبانو په څېر تلپاتې او دايمي نه و ، چې له شروع نه په کې نه نيټه ذکر شوې وي او نه هم وخت ، بلکې هغه به تر ټاکلې مودې پورې مؤقتي و. خو تاسې دلته د دوحې په تړون کې د طالبانو د دايمي اوربند په اړه ولولئ ؟

(٤- دايمي او هر اړخيز اوربند به د بين الافغاني ډيالوګ او مذاکراتو په اجنډا کې يوه موضوع وي.)

ملا برادر قطر کې وايي :

(او إسلامي امارت تعهد کړی چې د أفغانستان خاوره به د کوم هېواد د امنيت پر ضد نه استعماليږي، چې دا په أفغانستان کې تلپاتې سولې ته عملي زمينه برابروي.)

جهاد به تر هغې پورې جاري وي چې تر څو کافر باقي وي، خو دوی د دغه سولې سره جهاد ته د پای ټکې کيښودل غواړي، دايمي اوربند شريعت کې نشته. قريشو سره د حديبيې په مقام صلح کې نبي عليه السلام لس کاله اوربند کړی و.

عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ، وَمَرْوَانَ بْنِ الْحَكَمِ، «أَنَّهُمْ اصْطَلَحُوا عَلَى وَضْعِ الْحَرْبِ عَشْرَ سِنِينَ، يَأْمَنُ فِيهِنَّ النَّاسُ وَعَلَى أَنَّ بَيْنَنَا عَيْبَةً مَكْفُوفَةً، وَأَنَّهُ لَا إِسْلَالَ وَلَا إِغْلَالَ» سنن أبي داود وإسناده حسن.

مسور بن مخرمه او مروان بن الحکم وايي:

هغوی (د قريشو مشرکينو او مسلمانانو) لس کاله جنګ بندي باندې صلح وکړه، چې خلک به په امن وي، او پدې خبره چې زمونږ ترمنځ به په عهد باندې سالم زړونه وي، او غلا او خيانت به نه وي.

د سولې انتهايي مودې په اړه د علماؤ ترمنځ اختلاف شته، لکه امام خطابي ذکر کړي، د سولې مودې په اړه مختلف اقوال دي:

١. لس کاله آخري موده ده.
٢. څلور کالو څخه زيات روا نده.
٣. درې کاله.
٤. دې لپاره حد ندی معلوم بلکې د امام فکر ته به پرېښودلی شي.

حافظ ابن حجر وايي:

”وَقَدِ اخْتَلَفَ الْعُلَمَاءُ فِي الْمُدَّةِ الَّتِي تَجُوزُ الْمُهَادَنَةُ فِيهَا مَعَ الْمُشْرِكِينَ فَقِيلَ لَا تُجَاوِزُ عَشْرَ سِنِينَ عَلَى مَا فِي هَذَا الْحَدِيثِ وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ وَالْجُمْهُورِ وَقِيلَ تَجُوزُ الزِّيَادَةُ وَقِيلَ لَا تُجَاوِزُ أَرْبَعَ سِنِينَ وَقِيلَ ثَلَاثًا وَقِيلَ سَنَتَيْنِ وَالْأَوَّلُ هُوَ الرَّاجِحُ وَاللَّهُ أَعْلَمُ.“ [فتح الباري]

ژباړه: علماؤ کرامو د مشرکانو سره سولې د جائز مودې په اړه اختلاف کړی، ويل شوي چې د لس کلونو څخه پورته روا نده لکه څنګه چې حديث کې دي، دا د امام شافعي او جمهورو قول دی، دويم دا ويل شوي چې زياته موده هم روا ده، بل قول دا چې د څلورو کالو څخه زياته روا نده،






چـا ویـلي درې کالـه او چـا دوه کالـه خـو اول قــول راجــح دی، (لــس کالــه مــوده) نــور اللــه خــه پوهیــږي.

شیخ الإسلام ابن تیمیة وایي:

”بَــابُ الْهُدْنَــةِ، وَيَجُــوزُ عَقْدُهَــا مُطْلَقًــا وَمُؤَقَّتًــا وَالْمُؤَقَّــتُ لَازِمٌ مِــنْ الطَّرَفَــيْنِ يَجِــبُ الْوَفَــاءُ بِهِ مَــا لَــمْ يَنْقُضْــهُ الْعَــدُوُّ وَلَا يُنْقَضُ بِمُجَــرَّدِ خَــوْفِ الْخِيَانَــةِ فِي أَظْهَــرِ قَــوْلَيْ الْعُلَــمَاءِ، وَأَمَّــا الْمُطْلَــقُ فَهُــوَ عَقْــدٌ جَائِــزٌ يَعْمَــلُ الْإِمَــامُ فِيــهِ بِالْمَصْلَحَــةِ.“ [الفتــاوى الکــبری ج 5 / ص 542]

ژبــاړه: د ســولې پــه اړه بــاب، د ســولې تــړون مطلــق یعنــي بغیــر د قید څخــه او تر یــوې نیټــې پــورې جائــز دی، پــه دواړو خــواو وفــا کــول لازم دي، تــر څــو چــې يې دښــمن مــات نــه کــړي، او د علــماؤ صحیح قــول مطابــق، تــش د خیانــت لــه ډاره هــم دا تــړون نــه ماتیــږي، او هــر چــې مطلــق دی، نــو دا تــړون بــه امــام د مصلحــت پــر بنــاء تــړي.

امــام ابــن المنــذر د بعضــې علــماؤ څخــه ذکــر کــړي:

”لَا يَجُــوزُ مُهَادَنَتُهُــمْ إِلَى غَــيْرِ مُــدَّةٍ، لِأَنَّ ذَلِــكَ يُوجِــبُ الْكَــفَّ عَنْهُــمْ عَــلَى الْأَبَــدِ، وَلَا يَجُــوزُ ذَلِــكَ، لِأَنَّ قِتَالَهُــمْ مَتَــى قُــدِرَ عَلَيْــهِ يَجِــبُ إِذَا كَانُــوا أَهْــلَ أَوْثَــانٍ حَتَّــى يُسْــلِمُوا، وَقِتَــالُ الَّذِيــنَ أُوتُــوا الْكِتَــابَ يَجِــبُ حَتَّــى يُسْــلِمُوا، أَوْ يُــؤَدُّوا الْجِزْيَــةَ، وَإِذَا هَادَنَهُــمْ عَــلَى غَــيْرِ مُــدَّةٍ، كَانَ ذَلِــكَ عَقْــدًا خِــلَافَ ظَاهِــرِ كِتَــابِ اللــهِ، وَذَلِــكَ مَــرْدُودٌ لِأَنَّ اللــهَ أَمَــرَ بِقِتَــالِ الْمُشْرِكِــينَ، وَلَا يَجُــوزُ أَنْ يَعْقِــدَ عَقْــدًا خِــلَافَ أَمْــرِ اللــهِ.“

[الأوســط في الســنن والإجــماع والاختــلاف ١١ ج / ص ٣١١]

ژبـاړه: تــر نامعلومــي نیټــې اوربنــد نــاروا دی، ځکــه دا د ابــد لپــاره لــه هغــوئ څخــه لاس نیــول دي، او دا جائــز نــدي، ځکــه د هغــوئ پــه جنــګ چــې کلــه هــم بــر لاسي شــو نــو واجــب دی، کلــه چــې هغــوئ د بتانــو عبــادت کونکــي وي (اهــل کتــاب نــه وي) تــر دې چــې اســلام راوړي، او د اهــل کتابــو جنــګ هــم تــر هغــه واجــب دی، چــې اســلام راوړي، يــا جزيــه ورکــړي، او کچیــرې نامعلومــه مــودې بانــدې ســوله وکــړي، نــو دا تــړون د اللــه د کتــاب د ظاهــر خــلاف دی، او باطــل دی، ځکــه اللــه تعالــی د مشرکانــو پــه جنــګ امــر کــړی، او د اللــه د حکــم خــلاف تــړون نــاروا دی.

دغــه رنــګ خــبره علامــه ابــن قدامــه هــم کــړې چــې ابــدي ســوله نــاروا ده.

راجــح قــول پــه اتفــاق د علــماؤ سره دا دی چــې هــر اړخیــز او دایمــي اوربنــد پــه شریعــت کــې جــواز نــه لــري، مطلــق اوربندونــو خــبره هــم علــماؤ کــړی خــو دایمــي چــې د ابــد لپــاره وي، پــدې بانــدې د علــماؤ اتفــاق دی چــې دا نــاروا دی او د طالبانــو اوربنــد دایمــي دی.

نــو تاســې ولوســتل چــې د حدیبــې پــه ســوله کــې معــین وخــت ذکــر شــوی و، نــه دا چــې د طالــب پــه څېــر دایمــي او تــل پاتــې ســوله وي، دایمــي نــه وه لکــه د طالــب د تســلیمۍ تــړون چــې وخــت پــه ذکــر نــه دې او دایمــي يــې د کفــر طــوق لعنــت غــاړه کــې واچــوه ،نــه مــو پــه تړون کــې ورسره کــوم معــین وخــت ټاکلــی او نه هــم دا معلومــه ده چــې ستاســې دا تــړون بــه پــه څــه نقــض کیــږي ، بلکــې پــه تــړون کــې پــه همــدې مــورد مــو د دایمي او تلپاتــې ســولې الفــاظ ښــه واضــح دي .

ورونــو! د اســلام ســیاسي نظــام کی ســوله موقــت وي اوتســلیمي تلپاتــې او ابــدي وي، ځکــه کلــه چــې دښــمن تــه تســلیم شــې نــو مجبــور يــې لــه خپلــو ټولــو اهدافــو او دعــوو تېــر شــې او د دښــمن عســکري شروع کــړې ، د ســولې او تســلیمۍ ترمنځ عــام طــور سره فــرق همــدا دی لکــه څنګــه يــې چــې طالــب عمــلي کــوي ، طالــب د تســلیمۍ ډیــری څرګنــدې بیلګــې ورانــدې کــړي او لا يــې هــم وړانــدې کــوي ، د طالــب لــه خــبرو همــدا جوتیــږي چــې دوئ د تســلیمۍ لفــظ د تلپاتــې ســولې او اوربنــد پــه نومونــو تعبیروي خــو حیــف دا چــې د طالــب کشرخیلــو عقــل هیــڅ کار نــه کــوي .

دویــم : مونــږ مخکــې هــم ویــلي و، چــې طالبــان د ســولې پــه نــوم امریکایانــو لــه هــرې خــوا تیټــګ وتــړل، او پــر طالبانــو يــې د تعطیــل الجهــاد قباحــت ومانــه، داســې کیســې يــې ورسره وکــړې چــې مکمــل يــې پــه خپلــو دامونــو کــې راګیــر کــړل، اوس چــې قــدم اخــلي نــو هــم يــو وار دغــه کفــارو سره رابطــه کــوي او معلومــات تــرې کــوي. د وسلوالې مبارزې ځــاي يــې ورتــه ورک کــړو.

او نبــي علیــه الســلام ســوله دخپــل ځــان



قوي کولو او نورو فوځي تحرکاتو لپاره ترسره کېږي وه. د اسلام پیغام یې د وخت سترو امپراطوریو روم او فارس ته ورساوه، خو هغه الهي دین، د طالبانو په څېر دموکرات دین نه.

د صلح څخه وروسته یې د جهان په نورو کافرو یهودو، د نجد په قبائلو او رومیانو شروع وکړه. لکه ځېنې لوي مشهورې غزاګانې یې په لاندې ډول دي:

١.غزوة الغابة أو غزوة ذي قردٍ ٢.غزوة خيبر ووادي القرى

٣.غزوة ذات الرقاع ٤.معركة مؤتة

او سرایا خو بې شمیره وی :

١.سرية غالب بن عبد الله الليثي إلى بني المُلَوِّحِ بالكَدِيد ٢.سرية حسمَىَ بالكسر ثم السكون مقصور: أرض ببادية الشام، بينها وبين وادي القرى ليلتان. وبعضهم قالوا حَسْمى. ٣.سرية عمر بن الخطاب إلى تربة ٤.سرية بشير بن سعد الأنصاري إلى بني مرة بناحية فدك ٥.سرية غالب بن عبد الله الليثي ٦.سرية عبد الله بن رواحة إلى خيبر ٧.سرية بشير بن سعد الأنصاري إلى يمن وجبار ٨.سرية أبي حدرد الأسلمي إلى الغابة ٩.سرية ابن أبي العوجاء ١٠.سرية غالب بن عبد الله إلى مصاب أصحاب بشير بن سعد بفدك ١١.سرية ذات أطلح ١٢.سرية ذات عرق إلى بني هوازن ١٣.سرية ذات السلاسل ١٤.سرية أبي قتادة إلى خضرة.

زمونږ پوښتنه دا ده چې طالبان به کوم ځای کې په کافر ېز کوي ؟ په چا به جنګ کوي ؟ معلومه خبره ده، د مسلمانانو په خلاف به یې کوي

د امریکایانو سره له سولې وروسته دوی په کوم کافر حمله وکړه ؟

د کوم مظلوم مسلمان پوښتنه یې وکړه؟

او یا کوم خلک چې کفارو باندې بریدونه وي د همغه سپیڅلو مجاهدینو وژلو ، بندیانولو او شړلو ته یې مکمل ملا وتړله ؟

ایا رسول الله صلی الله علیه وسلم ابوبصیر باندې رد وکړ؟

ایا د هغه د وژلو اراده یې وکړه ؟

چې نن طالب د خلافت په مجاهدینو باندې هر طرف ظلم شروع کړی او د امریکایانو په دستور هرطرف موحدین او مجاهدین شهیدانوي .

طالبانو سره به دا ومنو خیر تاسې د حدیبیې سوله وکړه امریکایانو سره مو سوله وکړه ، دا چینایانو سره مو څه کېسه روانه کړې ؟

دا روسانو سره مو کومه خپلولي ده ؟

دنورو کفارو سره مو کله او چرته سوله وکړه ؟

رسول الله صلی الله علیه وسلم خو یو قریشو سره سوله وکړه نورو ټولو ته خو یې امن ورنه کړ ، بلکې په هر طرف یې غورځنګونه شروع کړل ،رسول الله صلی الله علیه وسلم خو قریشو سره د محدود وخت لپاره ېز بندي کړې ، چې ته به تر دغه ټاکلي وخته په ما حمله نه کوي زه به یې په تا نه کوم ،

رسول الله صلی الله علیه وسلم چې له حدیبیې راغې لکه څنګه مو چې پورته یادونه وکړه د نورو غزواتو او سریو په شمول یې خیبر فتحه کړ ، وروسته د حدیبیه نه کال پوره نه وه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم خیبر باندی لښکر ورمرش کړ ، په دې سوله خو رسول الله صلی الله علیه وسلم ..

د خیبر د خلکو هغه قوت وپاشه هغوی خو د قریشو په زور نازیدل ، قریش یې ترې یو طرف کړل ،د خیبر یهود یې ځانته کړل ، رسول الله صلی الله علیه وسلم چې له حدیبیې راغې نو پوهیده چې خیبر یې په اسانه لاس ته ورځي او هلته ښه پریمانه غنایم دي نو اعلان یې وکړ چې څوک ماسره د حدیبیې په سوله کې نه و، د عمرې په سفر کې راسره نه و، هغه خیبر ته نه ورېم ، هغه پوهیده چې اوس به دا کسان مفته د غنایمو ترلاسه کولو لپاره روان شي ، بلکې دوی یې د تبوک غزوې ته یوړل چې هلته یې ایمانونه مالوم کړي ، خیبر خو یو انعام و چې د حدیبیې سولې په پایله کې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته الله متعال ورکړ .

طالبه بیا دربانده غږ کوو د رسول الله صلی الله علیه وسلم سوله منځ اوخپل قبیح عمل وربانده قیاس کوې ؟

ایا د حدیبیې له سولې وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم جهاد کړی که نه ؟

دشمن پسې لښکرې ویستلي او که نه ؟

**طالبه!** تا خو د تلپاتي او دایمي اوربند کیسی او تړونونه دی شروع کړي دي، رسول الله صلی الله علیه وسلم د حدیبیې له سولې وروسته خیبر ته لاړ .

**طالبه !** وایه کنه ، ته چرته او کوم طرف د غزا په نیت لاړې؟ کوم طرف پلان لرې ؟

د حدیبیې د سولې بله ستره لاس ته راوړنه د دعوت د ستراتیژۍ تطبیق و ، مسلمانان اداده شول ، مکه کې رانښکاره شول ښکته پورته یې سفرونه وکړل ، راشه درشه یې زیاته شوه ، د دعوت لمن پراخه شوه همدا زمینه مساعده شوه چې په اتم کال د مکې د فتحې امادګي ونیول شوه .

**طالبه !** ته څه وخت د امریکا د فتحې تصمیم نیسي ، ستا په تسلیمۍ خو مسلمانان نور هم ذلیله او محدود شول ، د توحید دعوت بند شو ، علماء شهیدان شول ، په دعوتونو د قران په درسونو یې تاسې بندیزونه ولګول.

د حدیبیې سوله خو د مکې د فتحې په خاطر وه ، چې الله ورته زمینه مساعده کړه ، له دې مخکې خو مسلمانان چا نه منل ،دې سولې سره خو د یو دولت په حېث راڅرګند شول مسلمانان ازاد شول ، سفرونه یې وکړل ، له دې سولې وروسته زیات خلک مسلمانان شول ، یو کال وروسته یې عمره هم وکړه همغه خپل مقصد یې هم ترلاسه کړ ، خو دا ځل له تیر څخه عمره ډېره متفاوته وه ، د خیبر غنایم ورسره و ، ښه په شان او شوکت او ښه ډک لاسونه باعزته لاړل ، طالبه تا څه لاس ته راوړل .؟

**طالبه!** د امریکا فتحی لپاره به اروپا ته مسلح ورغلی وی، بیا که امریکایانو سره دې سوله کوله د دې لپاره چې انګلستان . فرانسه،جرمني... او نور کفري هیوادونه فتحه کړې نو بیا دې قیاس پرځای وه، کنه اوس خو تسلیم شوی یې، بس خپل کفر باندې اعتراف وکړه ،ضد مه کوه د کفر نه د ویستلو لارې وګوره کنه داسې همداسې تور مخ به الله متعال سره مخ شی .

**طالبه!** له امریکا سره دې سوله وکړه، ځه نو په چین ورمنډه کړه هم به ترې غنایم ترلاسه کړې ، هم د یغور مسلمانان ازاد کړې ، د ایران په روافضو ورمنډه کړه ، د پاکستان مرتدین څنګه شول ؟

هغوی خو ستاسې مخکنی حکومت هم چپه کړې و ،ستاسې مشران یې بربنډ په امریکایانو خرڅ کړل ، نور دې هم ډېر پورونه ورپورې دي ، هغه خو شته په هغې ورشه !

ته خو بیرته همغه ماتې امریکا ته زارۍ کوې، چې هله پیسې مې اذادې کړه ، هله په رسمیت مې وپیژنه هله هغه وکړه او دغه وکړه .

دومره ذلیله شوې چې امریکا ته خپله امریکا ته په نارو سترې شوې او کار ونه شو اوس دې نو په ملت فشار واچوه او ملت دې اورې او ته په زارو او نارو سر کړ چې هله طالب په رسمیت وپیژنئ ،علت څه دې چې دومره کفارو سره د رسمیت شوقي یې ؟

دریم : نبي علیه السلام څخه اجتماعي سوله نده ثابت، خو طالبانو د نړۍ ټولو کفارو او مرتدو سره د سولې په نوم مذاکرات وکړل.

ګاونډیان : پاکستان، ایران، هند، تاجکستان، اوزبکستان وغیره، د امریکا متحده ایالتونه او د هغې متحدینو ته امن شو، او ېز بندي شوه، سعودي، مصر، عراق، شام، یمن وغیره ملکونو سره جنګ نه کوي، اروپایي ټولنه هم د امریکا متحدین دي، هغې سره دې هم سوله ده . د اسرایل یهودو سره جنګ نه کوي، روس سره خو هسې هم جنګ نه کوي، هغه خو تر اوسه اکمال کړي دي، د خلافت خلاف یې پریمانه اسلحې ورکړې، د ماسکو په بندو کوټو کې یې مجلسونه وکړل، ملا برادر وضاحت سره د امارت موقف بیانوي:

او إسلامي امارت تعهد کړی چې د أفغانستان خاوره به د کوم هېواد د امنیت پر ضد نه استعمالېږي، چې دا په أفغانستان کې تلپاتې سولې ته عملي زمینه برابروي.

داسې کمزورې خبره یې هم نده کړی، بلکې دغه کفارو سره یې تعهد کړی.





نبـي علیـه السـلام پـه یـو وخـت کـې اجتماعـي لسـګونو کافـرو بلکـې د نـړۍ ټولـو کافـرو سره سـوله نـده کـړې. داسـې نبـي علیـه السـلام نـدي کـړي چـې د مکې مشرکانـو سره یـې سـوله کـړې وي، دغـه رنـګ یهودیانـو سره یـې هـم سـوله کـړي وي، د نجـد قبائلـو سره، فـارس سره، رومیانـو سره دې ټولـو سره دې پـه یـو وخـت سـوله وي.

**طالبـه!** سـتا خـو تاریـخ کـې دا خـبره نـه شـته چـې لـه افغانسـتانه یـو لویشـت اخـوا د مسـلمانانو غـم درسره شي ، شـیخ مقبـول تقبلـه اللـه وايـي دوه زره نهـم کال کـې د امـارت پـه عـربي (الصمـود ) مجلـه کـې دا خـبره راغلـه چـې مـوږ لـه افغانسـتان څخـه یـو لویشـت هـم بهـر نه کـوم سـوچ لـرو ، نـه کـوم اقدام کـوو او نـه مـو چـاسره کار شـته ، کلـه مـو چـې دا خـبره وکتلـه د حقـاني پـه شـمول د امـارت د هغـه وخـت نـورو مشرانـو خـوا تـه لاړو چـې ستاسـې مقصـد لـه دې خـبرو څـه دې؟

مـوږ خـو دا جهـاد، عالمـي جهـاد ګڼـو ... نـه د قـوم لپـاره چاپـيره یـواو نـه هـم د بیـن الملـل پـه کربښـو کـې د وطـن پـه نـوم خـاورې ازادۍ تـه چاپـيره یـو ، مـوږ د نړیـوال جهـاد فکـر لـرو او تـر څـو چـې دا د بـین الملـل کربښـې پولـې ماتـې نـه شي د جهـاد هغـه مقصـد نـه ترلاسـه کیـږي . شـیخ مقبـول تقبلـه اللـه وايـي چـې حقانـي وویـل: کـه مـوږ ووایـو چـې موږ دا کربښـې نـه منـو ، نـو دا ددې مانـا ده چې مـوږ خلافـت اعـلان کـړی ، نـو د سرحداتو نـه منـل د خلافـت اعـلان دی او کـه دا کار وکـړو نـو بیـا بـه پـه ځمکـه کـې ځـاې ونـه لـرو .

نـو طالـب ملبشـو د رسـول اللـه صلـی الله علیـه وسـلم د شرعـي سـولې پـه ضـد د ټولـې نـړۍ کفـارو طواغیتـو ، مرتدینـو ، مشرکینـو سره پـه یـو ځـل سـوله کـړې ، ټولـو تـه یـې د امـن ډاډ ورکـړی او ښـه پخه یـي له جګـړې توبـه وویسـتله البتـه کفارو سره لـه جنګـه توبـه ګار شـول ، بلکـې د کفـارو د سـاتنې پـه هـدف د مومنانـو سره خـو اوس هـم پـه جنـګ کـې ښـکیل دي .

دریـم : طالـب تـه وایـو ! کـه څـه هـم تاسـې مرتدین یاسـت او د اسـلام لـه دایرې بهـر یاسـتۍ ، مسـلمان بایـد د اسـلام پـه ټولـو اصولـو عمـل وکـړي .. کـه څـه هـم ستاسـې سـوله امریـکا سره دا تسـلیمي ده سـوله نـه ده ، خـو کـه خپلـه دا تسـلیمي د حدیبـې پـه سـوله قیـاس کـوې ، نـو د حدیبـې د سـولې د ماتیـدو اصـول خـو هـم عملـي کـړئ کنـه ، تـه کـه د سـولې د کولـو اصـول د رسـول اللـه صلی اللـه علیه وسـلم د سـولې د اصولـو سره سـم ګڼـې نـو بیـا د سـولې د ماتیـدو اصولـو کـې خو هـم د هغـې پـیروي وکـړه کنـه ، د سـولې د کولـو اصـول منـې او د ماتیـدو اصـول یـې نـه منـې دا کـوم اسـلام شـو ، ځانتـه قـاضي تـه تللې یـې ، ستاسـې د اخسـتو او ورکولـو تلـې جـلا، جـلا دي .

د نبـي علیـه السـلام سـوله د یـو حلیـف په قتـل بانـدې ختمـه شـوه، د قریشـو امـداد کـول د بنـو بکـر سره د خزاعـه خـلاف د مکـې دفتحـې سـبب وګرځیـد، نبـي علیـه السـلام خپلـې لښـکرې پـه مکـه ورواچولې او د خپـل حلیـف انتقـام لپـاره یـې د فتـح مکـې غـزوه وکـړه، دغـه رنـګ بنـو قینقاع چـې تـر ټولـو زړور یهـود وو، مدینـه کـې ورسره اوسـیدل، تـر اوسـه نبـي علیـه السـلام پـه هغوی اقـدام نـه و کـړی ، چې د یـوې زنانـه بـې عـزتي یـې وکـړه، نـو نبي علیـه السـلام پـرې اقـدام وکـړ او هغـوی یـې محـاصره کـړل او آخـر یـې لـه مدینـې څخـه وشـړل. اګـر کـه تـر دې وخـت پـورې کومـه رسـمي سـوله نـه وه، خـو په یـو بـل لا تعـارض نـه و شروع شـوې.

د قینقـاع جنـګ واقعـه هـم محققینـو ضعیفـه کـړې، اګـر کـه حافـظ ابـن حجـر ورتـه حسـن ویـلي، خـو خپلـه یـې یـو راوي ضعیـف کـړی ،نـو دا د دې څخـه اسـتدلال بـه علی فـرض صحتـه وي، او نبي علیـه السـلام خامخـا دا کار کـوو، ځکه چې د خزاعـه لپـاره یـې پـه مکـه جنګ وکـړ، نو د یـوې مسـلماني خـور لور لپـاره یـې هم د دغـه جعلـي معاهـدو څـه پـروا نـه سـاتله.

د امریـکا متحـده ایالتونو سره د مسـلمانانو بـې شـمیره پیغلـې بندیانـې دي، عافیـه صدیقیـه پـه شـمول سـلګونو عـرب او نـورې مهاجـرې خوینـدې ورسره د اسـارت شـپې تـیروي ،خـو د طالبانـو پـروا هـم نشـته، بـې غمـه ورسره د سـولې تړونونـه امضـاء کـوي، نـو د مسـلمانانو پیغلـو د بې عزتـۍ پـه وخـت دغـه کفـارو سره سـوله روا نـده.

طالبـه یـو ځـل د امریـکا نـه پوښـتنه وکـړه چـې لـه تـړون وروسـته یـې څومره مسـلمان شـهیدان کـړي څومـره یـې بندیـان کـړي ؟

دا مالومـات وکـړه چـې څومـره مسـلمانې خوینـدې او میندې ورسره بندیانـې دي ، نـوره پوښـتنه یـې کـه نـه شـې کـولای خـیر د یـو لیسـت غوښـتنه خـو تـرې وکړه دا خـو بـه دې د بـین الملـل پـه اصولـو کـې دیپلوماتیـک حـق هـم وي چـې یـو لیسـت تـرې طلـب کـړې ګونـدې دا لیسـت درکړي او پـه دې لیسـت دې دغـه لـه غـیرت ، احسـاس، عاطفـې ، حیـا خـالي وجـدان او ضمـير کـې لـږ درد پیـدا شي ، لـږ فکـر درسره پیـدا شي چـې څـه کـول پـه کار و او تـا څـه وکـړل ، دومـره ذلیلـه او رسـوا یـې چـې اوس د خپلـو کړنـو یادونـه هـم علنـي نـه شـې کـولای ځکـه چـې پوهیـږې چـې غـیر لـه شرم او خجالـت څخـه بـل څـه نـه درکـوي .

ملا داد الله وايي:

چـې زمونـږ خوینـدې ورونـه دې کفـارو سره پـه زندانـو کـې بندیانـې وي، سـیمې مـو اشـغال وي او څـوک چـې امریـکا سره خـبرې کـوي نـو دا بـه غـدار او خائـن وي، نـو څـه مـو فکـر دی، نـن د طالـب ټـول مـشران خائنـان او غـداران نـه دي؟

د رسـول اللـه صلـی اللـه علیـه وسـلم سـوله درې کالـه وروسـته د قریشـو د سرغړونـو پـه سـورت کـې ماتـه شـوه ،نـو بیـا یـې امادګـي ونیولـه او پـه قریشـو یـې حملـه وکـړه ؟

او کلـه چـې لـه سـولې وروسـته هـم لـه حدیبيې سـتون شـو نـو کلارې کینناسـت، بلکـې پـه خیـبر یـې بریـد وکـړ داسـې نـه چـې مکمـل عـالم کفـر تـه یـې د امـن ډاډ ورکـړ ، هغـې خـو لـه یـو اړخـه ځـان مطمـین کـړ او پـه بـل اړخ یـې ورودانـګل .

د اسـلام د سـیاسي نظـام د قلمـرو د پرمختـګ سـتراتیژي یـې تطبیـق کـړه ، د قتـال سـتراتیژي یـی تطبیـق کـړه ، راغـې پـه ارام یـی وانـه ړول تبـوک تـه یـي مخـه کـړه ،

سـوچ وکـړه چـې د رسـول اللـه صلـی اللـه علیـه وسـلم سـوله پـه څـه شـې ماتـه شـوه ، د اسـلام پـه سـیاسي نظـام کـې سـوله د اسـاسي هـدف لاس تـه راوړو لپاره یـوه موقتـه وسـیله ده ، طالبـه سـتا اصـل هـدف اوس څـه شـې دې ؟

، چـې تـه ددې لپاره سـوله کـوې ، تـه اوس څه غـواړې ؟

سـتا ټـول هـدف خـو د چوکـې او واک تـر انحصـاره دې او بـس .

د سـولې وروسـته خـو تـا هـر څـه ختـم کـړل ، جهـاد ختـم ، پرمختـګ ختـم ، هـر څـه ختـم ، رسـول اللـه صلـی اللـه علیـه وسـلم خـو مدینه کـې قـوي نظامـي ملاتړ درلـود، داخـلي نظـام جـوړ دی شریعـت حاکـم دی ، فیصلـی پـه قـران کیـږی او بیا غـواړي چـې عمـرې تـه لاړ شي ، مکـی تـه مسـلح حرکـت کـوي ، بیـا لاره کـی د موقت او اضطـراري حالـت سره مـخ کیـږي او بیـا موقـت وخـت لپـاره سـوله کـوي، یعنـې رسـول اللـه صلـی اللـه علیـه وسـلم پـه اصطـلاح بودیجـه لـري ، بیـا نـو د دښـمن خولـې تـه ورځـې او هغـه هـم د سـولې په نیـت نـه ځـي، بیـا هلتـه سـوله کـوي ، دا د رسـول اللـه صل اللـه علیـه وسـلم حرکت یـو نمایـشي حرکـت و ، خپـل زور یـې مکې والاو تـه ښـودلو، ورتـه یـې پـه زغـرده وویـل :یـا بـه سـوله کـوئ او یـا زه عمـره کـوم جنـګ تـه تیـار شـئ ، پـه مـرګ یـې بیعـت کـړې و، دا یـي ورتـه ښـکاره کـړه چـې : یـا بـه دربانـدې ځـان د یـو قـوت پـه حېث منـم او یـا بـه عمـره کـوم .

خـود طالـب موقـف همغـه د مشرکینـو پیشـنهاد و ، او طالـب هـم د مشرکینـو ټـول پیشـنهادات ومنـل .

دغـه سـوله کـې ډیـر خلـک تلـلي، راغلي ، کلـه بـه چـې مکـې تـه اسـتازي لاړل ، نـو هلتـه بـه ورتـه د مکـې قریشـو کشرانـو لکـه د طالـب کشرخیلـو پـه څیـر ویـل چـې مـوږ تـه د سـولې خـبرې مـه کـوئ مـوږ دوی سره د تـورې پـه زور غږیـږو ،




لمونځ ته راغې او نبي کریم صلی الله علیه وسلم مونږ ته د لمانځه امامت کاؤ.

کله چې صف ته نزدې شو نو ویې ویل: ای الله! ماته هغه بهتر او افضل شې راکړه چې خپلو صالحو بندګانو ته یې ورکوې.

کله چې نبي علیه السلام له لمانځه نه خلاص شو نو ویې فرمایل: اوس لږ وړاندې چا خبرې وکړې؟

هغه وویل یا رسول الله ما، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: نو ستا اس به زخمي کېږي او ته به د الله په لاره کې شهید کېږې.

کشف الاستار ۲/۲۸۱ ورجاله وثقات.

هو همدا د رب په مینه مست او ریښتني رجال به یو ځل بیا نړۍ په الهي نظام منوره کړي، بعون الله.

خو افسوس د هغه چا په حال چې له دین نه خبر نه دي، او دا مخلص مجاهدین په غلطو نومونو یادوي، صد افسوس د دوی په حال چې مجاهدین یې د فلاح او کامیابۍ لور ته را بولي خو دوی د غیرو خلکو په خولو دوی خوارج او د نورو پروژه بولي.

## د کایناتو خالقه!

ته دې خلکو ته هدایت وکړه، څوک چې په غلطه لار درومي، یقیناً ته چې چاته هدایت وکړې بیا یې څوک نشي ګمراه کولی، او څوک چې ګمراه کړې بیا ورته بل څوک هدایت نشي کولی، اللهم امین.

ای خلکو!

د الله په خاطر خپل زړونه مو د دین له نوره ډک کړئ، چې په موجوده کفري دسیسو پوهه شئ، بس کړئ، نور د بې دینو خلکو تقلید ځکه دوی مو جهنم په لور بیایي.

د خپل نړیوال اسلامي خلافت غېږ ته پناه راوړئ تر څو د دجال له لښکرو سره جهادونه وکړئ او د دوی له شره بچ شئ، ان شاءالله.

دین ته مخه کړئ، له عقل مو کار واخلئ او په هسې چتې افواهاتو د الله عزوجل د لارې مجاهدین غلط مه یادوئ.

همدا مجاهدین د محمد مهدي علیه السلام هغه لښکر دی چې د دجال لښکرو ته به ماتې ورکوي او ځمکه به د دوی له شره پاکه وي، ان شاءالله.

وما علینا الا البلاغ المبین.

الحمد لله رب العالمین والصلاة والسلام علی رسول الله وعلی آله وصحبه ومن والاه، أما بعد:

د کوچنې اختر څو ورځې تېرې وې، چې الله عزوجل رابانديې ستره پیرزوینه وکړه، او د اسلامي دولت تمکین ته یې د هجرت توفیق راکړ، په یو سخته لار د کوټ سیمې ته ورسېدو، هرې خوا ته ډلې، ډلې ګلالي مجاهدینو غوږې ځنې اړولې ، راړولې، او لر ،بر د دښمن په لټه کې ګرځېدل، مخلص (سپرغی) به د دښمن په تعقیب کې په یو لور روان و، شاهین به بلې خوا په مرتدینو غزا جوړه کړې وه، تور ابو بکر، سهیل او ذو الفقار به هم د ملګرو په شمول د کوټ په کلیو ګرځېدل، راګرځېدل، اورکزي مجاهدین هم په موټر سایکلو ښکته پورته ګرځېدل، او د مجاهدینو له موټرونو به هر چرته په سلګونو ماشومان راتاو وو، ، د مجاهدینو سره یې مینه تر دې حده وه چې د دوی له لاسونو او سرونو به یې تور عقابي بیرغ په زور کش کاوه، چې کاکا دا مونږ ته راکړه، تاسې ځان ته نور جوړ کړئ. د کوټ په اکثرو مساجدو کې د اسلامي خلافت دیوان الدعوة د علماؤ لخوا د عامه خلکو پوهاوي په پار د عقیدې، ضروري احکامو او مهمو واجباتو درسونو لړۍ روانه وه، مدارس او مکاتب آباد و، خدمت عامه او د طب بخشونه هم خورا فعال و، قضاء، حسبې او د امنیت مراکز هم ودان و، د مجاهدینو د پیرې، ګزمې او خط ساتلو نظم هم فوق العاده و، د خلافت مجاهدینو خپل رعیت سره بې کچه مینه کوله، اسلامي شریعت قایم و، هرې خوا ته امن، ډاډ، سکون، ورورګلوي، مینه او الفت و. هر عام او خاص په خوله مسکا او خوشحالي وه.

یوه ورځ د ملګرو سره د ښوې اونې یخ سیورې ته ناست و، چې ګورو مولوي صیب مسلم کنړې ځان سره یو بل د سپینو جامو عالم هم زمونږ مجلس ته راوست، دا څېره زما لپاره نآشنا وه، کله مې نه وه لیدلې، د تعارف پرمهال مسلم مولوي صیب وویل چې دا شیخ ضیاء الحق کنړی نومیږي، ضروري تعارف یې وکړ، بیا یې وویل چې شیخ صیب د خراسان والي حافظ سعید خان سره بیعت لپاره راغلی و او اوس خپل اهل راوستلو په پار لاندې کېوزي، ترڅو د هجرت ستره فریضه ادا کړي. چې بیا دغه عالم د شیخ ابو عمر په نوم وځلید چې د خراسان غږ مجلې تېرې ګڼه کې مو دده سیرت ولوست، څو ورځې چې تېرې



# د خراسان پر افق درې ځلیدونکي ستورې



شوې، مونږ همدې کوټ کې وو، چې سعد أمارتي د یو څو ملګرو په ملتیا هجرت راوکړ، او هغه هم زمونږ میلمه شو، هغه راسره دوه ،درې خوږې ورځې تیرې کړې، کوټ یې ډېر خوښ شو، د کوټ خوږ شاوخوا سیمې یې وکتلې، د لا پرمختګ لپاره مجاهدینو سره یې خپلې تجربې هم شریکې کړې، او بله ورځ مامند ته وخوځېد، مونږ هم د سعد أمارتي په ملتیا مامند ته پورته شو، دا نو مامند ته زمونږ لمړی سفر و. هلته مو مجاهدینو سره لیدنې کتنې وکړې، او د سینزلی په یو مرکز کې د تاسیسي تربیتي دورې لپاره منتظر شو، یوه ورځ ددغه مرکز په برنډه کې ناست وم، چې مخامخ لویې دروازې څخه یو څو ملګرې رادننه شول، چې تر ټولو مخکې یې دنګ ځوان و، په تن یې تورو جامو او په سر یې تور پټکي نوراني سپین مخ ته لا ښکلا او رڼا وربښلې وه، زما سترګې هم دغه ځوان کې خښې شوې او هڅه مې کوله چې دا څوک دی ؟

دغه وخت نوموړی زما په طرف ډېر رانږدې شوی و، نو ناڅاپه مې متحیر ذهن ادراک شروع کړ، چې دا خو شیخ جلال الدین دی، هغه څېره چې زما لپاره نهایت آشنا وه، د یو بدن دوه غړي و ، خو په دغه لباس کې مې ونه پیژانده، ځکه چې په ټول عمر مې پدې لباس نه و کتلای، د وړوکوالي راهیسې مې شیخ صیب په سپینو جامو، سپینو او سرو دسمالونو او تور پټکي پرته په نورو کالیو کې نه و لیدلای!

خو سمدستي مې ورمنده کړه، او ورغاړې وتم، هغه هم په غیږ کې جوخت ونیولم، دا نو هغه حالت و چې له بیان څخه بهر و. بیا مو شیخ صیب سره راغلیو نورو میلمنو سره ستړي مه شي وکړه، شیخ طاهر باجوړي (سلمان خراساني) او داسې نور ملګري ورسره وو. بیخي مو په شیخ صیب سترګې نه مړیدې.

دلته مو تر مازیګره خوږ مجلس وکړ، مازیګر شیخ صیب ویل چې فلاني مرکز کې مو بیان دی، مونږ هم ورسره لاړو، ډیرې مجاهدین راټول ول، شیخ صیب ماښام لمونځ ورکړ، په سجده کې یې زیات وژړل، رب العالمین ته یې په مونځ کې عاجزي وکړه او بیا یې زیات مؤثر او زړه راښکونکی بیان وکړ، د ملګرو سترګې لمدې شوې او ایمانونه یې تازه شول.

د بیان څخه وروسته شیخ صیب سره د ارهابي مولوي مرکز په لور روان شو، چې کله مرکز ته ورننوتلو ګورو چې د خراسان والي حافظ سعید خان ناست دی، څنګ کې ورسره سعد أمارتي هم ناست و ، مخامخ کټ کې ورسره سیف الاسلام مولوي صیب ناست و، ماښام تیاره وه، نو حافظ صیب متوجه شو، چې دا راتلونکی کس څوک دی ؟

چې کله شیخ صیب ورنږدې شو، نو حافظ صیب له خندا شین شو او ورته یې وویل: شیخ صیب زه خو حیران شوم چې دا کس څوک دی، ځکه چې بیخي لباس دې بدل کړی دی، تختو کې چې مونږ تاسې څو شپې وکړې نو ستاسې لباس

هماغه د ښار سپینې جامې او سپین دسمال و، شیخ صیب هم په خندا شو او ورته یې وویل چې دا جامې راته محمدي قاري صیب رالېږلې کړې ، چې شیخ صیب دې آسمان څکو غرونو او شنو درو کې دا تور کالي واغونده او دا خر څرمنې بوټان په پښو کړه . تر دغه دمه شیخ صیب او سعد امارتي هم ستړي مه شي نه وه کړې ، نو یو بل سره یې ښه کلک روغبړ وکړ او سیف الاسلام مولوي صیب خو هسې هم د شیخ صیب ګاونډي و، بیا دلته مجلس وشو،دماخستن د لمانځه امامت حافظ صیب وکړ، زمونږ هم حافظ صیب سره دا لمړی ملاقات و، شیخ صیب ورته زمونږ تعارف هم وکړ، بیا مو ورسره بیعت تازه کړ. دلته د پیښې سیمې ځینو زیارتونو او غیر شرعي قبرونو په اړه لازمې مشورې وشوې، او بیا ناوخته سره ټول خواره شول تقبلهم الله.

شیخ جلال الدین د سهار هغه ځلیدونکی ستوری و ، چې د خراسان پر افق د لږ وخت لپاره راوخوت ،د شپې په تیارو کې یې ډېرو لار ورکو ته د سهار رڼا ورکړه ، د یو روڼ سهار د راتلو زیری یې په لر بر خواره کړل او بیا د سبا په راختلو د خراسان له لمن څخه ولوید ، خو دده په پل روانه قافله له همغه وخته له سختو ګړنګونو او پیچومو تیرېږي او د خپل منزل په لور لار لنډوي ، شیخ جلال الدین څوک و او څنګه یې د اسلامي دولت تمکین ته هجرت وکړ او څنګه سره له نورو دوه ورونو یې ګلورینې ځواني د الله عزوجل د نظام د قیام په لاره کې قربان کړې راځئ په دې لیکنه کې یې راسره ولولئ .

## د شیخ صیب نوم او نسب:

د شیخ صیب خپل نوم ابو عبد الله جلال الدین و، پلار نوم یې حکیم سید او نیکه یې نور علي خان بن معتبر خان بن شاه خان بن موسی خان و، چې اصلاً د کنړ ولایت د مانوګي والسوالی د ننګلام د کلي اوسیدونکي و.

## د شیخ صیب کورنۍ پیژندنه:

د شیخ صیب والد او نیکه د شوروي خلاف مختلفو محاذونو کې برخه اخیستې وه، کله چې د دوی کلی ننګلام د شوروي درنده ګانو لخوا په بشپړ ډول وسوځېد نو د نورو خلکو په څېر دوی هم کلي پرېښودو ته اړ شول او د بمبارونو په سیورو کې د هجرت په پار ووځې ، ورځې د ولږو او تندو په حالت کې د

غرونو اوږده مزلونه ترسره کړل، تر دې چې باجوړ ته ورسېدل، هلته یې څو ورځې تېرې کړې او بیا د صوابۍ ولسوالۍ تربیلې په نوم سیمه کې یې سکونت اختیار کړ، چې دوه کاله پس ورته الله عزوجل مشر ځوی ورکړ، او د جهاد د ډېرې مینې له امله یې پرې د مجاهد نوم کېښود، چې وروسته د شیخ مجاهد محمدي په نوم وځلېد، بیا شیخ صیب جلال الدین یې څلورم ځوی و، چې د ولادت نېټه یې د ۱۴۱۲ هـ ق کال سره سمون خوري.

د شیخ صیب علمي ژوند:

شیخ صیب ابتدایي زده کړې د خپل والد صیب او د کلي ملایانو او استاذانو څخه وکړې، خو لږه موده وروسته د شیخ صیب والد د غریبۍ له امله بل ولایت ته مسافرۍ ته اړ شو او هماغه وه چې کور یې هم همغه ځای ته یوړ، شیخ صیب دغه ځای کې په ۱۱ میاشتو کې د قرآن کریم حفظ وکړ، الله عزوجل ورته نآشنا قوي حافظه ورکړې وه. او ډېر خوږ غږ یې درلود، د حفظ څخه وروسته د فیصل آباد مشهورې مدرسې [ستیانه بنګله] څخه یې علم حاصلول پیل کړل، چې په ټوله مدرسه کې یې لمړۍ نمره وګټله او سعودي څخه راغلیو میلمنو په لاس ورته انعامات ورکړل شول.

بیا شیخ صیب نورو زده کړو لپاره پېښور ته راغی، او دلته یې د پېښور یوې مشهورې مدرسې څخه د مختلفو فنونو په شمول د احادیثو او تفسیر علم ترلاسه کړ، او د لته یې هم د فراغت په وخت لمړی مقام وګاټه او ممتاز سند یې ترلاسه کړ.

د فراغت سره سم د پېښور په یوې مشهورې مدرسه کې مدرس مقرر شو، چې د احادیثو او فنونو اکثر کتابونه یې تدریس کړل، لکه صحیح البخاري، صحیح مسلم، سنن نسائي، مشکاة، بلوغ المرام، ریاض الصالحین، نخبة الفکر، القصیدة النونیة، الفیة ابن مالک، الکافیه، أصول الشاشي، المقامات الحریریة، هدایة النحو، علم الصیغه او داسې نور.

د قرآن کریم په تفسیر کې هم ورته






رب العالمین نآشنا ملکه ورکړې وه، او هر کال شعبان او رمضان کې به یې تفسیر دوره کوله، چې سلګونو شاګردان به ورته حاضرېدل. ددې سره ،سره شیخ صیب په یو مشهور جامع مسجد کې خطابت هم درلود، چې خطبې ته به یې د لرې پرتو سیمو څخه خلک راتلل.

د علم الدرایه او علم الروایه سربېره شیخ صیب ته الله تعالی د حق په دفاع کې باطل پرستو سره د مناظرو نآشنا کمال ورنصیب کړی و ،د فرق ضاله په رد کې یې تخصص درلود ددې هرڅه سره ، سره د عربي ژبې پیاوړی شاعر هم و، چې ځینې قصائد او آثار یې دیني مجلو کې چاپ شوي هم دي.

### د شیخ صیب علمي آثار:

د شیخ صیب د احادیثو او فنونو غږیزې سلسلې مشهورې دي، چې د علم طالبان پرې خپله تنده ماتوي ، د شیخ صیب سفرونه، درسونه او مصروفیات زیات و، نو ځکه لیکلي آثار یې کم دي، یو بل عمده علت یې دا دی چې شیخ صیب ډېر کم عمرۍ کې د شهادت په مرتبه فائز شو (ان شاء الله) نو ځکه یې هم لیکلي آثار کم دي، په ۲۰۱۰ میلادي کال کې یې فراغت وشو او اووه کاله پس شهید شو خو بیا هم ځینې رسائل یې دا دي:

۱.الرسالة المنصورة في اثبات الخلافة الموعودة.

دا په عربي ژبه کې ده، خو متاسفانه چې لا هم غیر مطبوع پاتې ده.

۲.أسباب النصرة والهزیمة.

پښتو ژبه کې یې د ځینو مجاهدینو په غوښتنه دا رساله لیکلې وه.

۳.رحمة الباري، پښتو کې مطبوع ده.

۴.الفرقان في بیان أن الکتاب والسنة وافیان. پښتو کې مطبوع ده.

۵.الاستدراک المتین علی الفتح المبین.

دا اصول حدیثو کې د یو عالم په کتاب استدراک دی او عربي ژبه کې مخطوطه ده.

٦.الانتصار علی ما تضمنه نبدید الکوثري من العثار.

دا هم په عربي ژبه کې علمي رساله ده، او لا تر اوسه هم مخطوطه ده.

او داسې نور د مسائلو تحقیقات یې وخت په وخت نشر شوي دي.



د بیاناتو، مناظرو او محاضرو په پایله کې یې ډېری خلکو ته الله عزوجل د توحید عقیده ورنصیب کړې ده.

### شیخ صیب ذاتي صفات:

د شیخ صیب د ژوند دا باب هم ډېر پراخه دی، خو لنډ به داسې ووایو چې ډېر د ساده خوي مالک، حلیم، خوش مزاجه او د نرم زړه خاوند و، هیڅکله یې له چا څخه شخصي انتقام نه دی اخیستی، تواضع، انابت، کتاب سنت باندې سخت غیرت کونکی او د مسلمانانو په درد خفه کیدونکی انسان و او رب العالمین ورته دا صفت ورکړی و ، چې ډېر سست خلک به یې هم په حرکت راوستل او د اسلام په نفع به یې یو فعالیت په لور سوق کول، انسان ته به یې حوصله ورکوله، د ملګرو او شاګردانو په پرمختګ به بې حده خوشحالیده. مُربيِّ انسان و، په خپلو محنتونو یې زیات خلک روزلي و، دغه رنګ ټولو اقرباؤ سره به یې خپلولي پاللە او د نړۍ څخه سترګې پټولو پورې ترې مومنان او موحدین هیڅوک خفه نه و، او د الله دښمنان ترې خوشحاله نه و، حق ګوئي یې لوي صفت و، چې په هر شرک او مشرک، ردت او مرتد، بدعت او مبتدع یې رد کړی دی، حق یې بیان کړی دی، ولو که پدې لار کې ګوابښل شوی و، ډارول شوی و، ځینو صوفیانو او مشرکانو لخوا وهل شوی هم و، حتی د مرګ پلانونه یې جوړ شوي وو، خو په الله عزوجل یې کلک توکل و او د حق په باب یې د بندګانو لحاظ نه پیژانده.

د شرک الحاکمیة مسئله یې ښه په ډاګه بیانه کړې وه، د روافضو په خلاف یې د پېښور په مشهورو جامعاتو کې محاضرات وړاندې کړې و، شرکي نظامونو ته وټونو ورکولو په پار یې قناعت بخش درسونه کول او د وټونو په وخت به یې عوامو او خواصو ته ددې فتنې څخه د ځان ژغورلو کلکه توصیه کوله، د جهاد فرضیت فتوه یې هم ښکاره ورکوله، د ګستاخ رسول په اړه د سر پرې کولو حکم یې د منبر په سر بیانوو، لنډه دا چې د هر باطل په وړاندې یې خپل منبر څخه غږ پورته کړی و.

### د شیخ صیب جهادي ژوند:

زده کړو پرمهال شیخ صیب د جهاد سره رغبت پیدا شو، او د فرصت پیدا کیدو په صورت کې به یې جهاد ته مخه کوله، افغانستان او پاکستان دواړو کې یې تر یو حده

جهاد کړې، د کنړ مختلفو سیمو لکه ځوکۍ، دیوګل، وټپور، ځانګار وغیره سیمو کې د مخلصو مجاهدینو سره یو ځای په سنګرونو کې له خلافت له ظهور څخه مخکې پاتې شوی چې د ډیرې جګړو په لړ کې یې د امریکایي درنده ګانو په بیزونو د مجاهدینو په ترسره شویو عملیاتو کې یې فعاله ونډه اخیستې وه، د پاکستان مرتد حکومت پرضد جنګیدونکي مجاهدین یې هم منظم او منسجم کول، په شرعي اړخ کې یې د هغوی همکاري کوله او د هغوی د مفتي حیثیت یې درلود، د القاعدې د هغه وخت ځینې مهاجر مفتیان یې شاګردان ول، د هغوی یې هم علمي او عملي روزنه کوله.

د روس او تونس مهاجرو مجاهدینو سره یې کلکې اړیکې وې، او پاکستان کې د مجاهدینو اسلحې وغیره به یې هم ساتلې، دغه رنګ خپله یې هم ښاري تربیت تر یو حده کړې و خو د مشکلاتو له امله یې لا پای ته نه و رسولې.

لکه څنګه چې پیښور کې شیخ صیب یو مطرح علمي او جهادي شخصیت و، ځکه استخباراتو پرې ډول، ډول هڅې وکړې، چې په خپله نفع یې استعمال کړي. په دې لړ کې یې شیخ صیب ته مختلف نوعه وړاندیزونه وکړل، د مال، دولت، چوکۍ، منصب، نکاحونو، موټرونو، کورونو، الغرض زیات مادیات یې ورته مخې ته کړل خو الله عزوجل په خپل فضل له دغه دسیسو او توطیو څخه وژغوره، ډیرو جاهلانو او متجاهلانو ورته د استخباراتي شبکو په لمسون د خپل تنظیم، ګوند او ډلې جوړولو مشورې هم ورکړې خو شیخ صیب ورته تل منفي ځواب وایه.

د اسلامي خلافت سره بیعت:

کله چې د خراسان په ځمکه امارت د اسلام ماتونکو کړنو په ډنډ ورګډ شو، او تر سره په کې ور ډوب شو، نو شیخ صیب هم له طالبانو څخه ناهیلی شو او د عراق او شام مثبت بدلونونو ته زیات هیله مند و، خو دا یې په ګمان کې هم نه و چې د اسلامي دولت وړانګې به د خراسان او هند تر سیمو هم راورسیږي. نو ځکه یې عراق او شام ته د هجرت په اړه خپله هم تصمیم درلود او د راز ملګرو ته یې هم د هجرت لپاره د چمتوالي توصیه کوله خو د رب لوئي احسان و، چې خراسان یې هم ددغه نعمت څخه برخمن کړ، چې د الله ددین د نفاذ په پار جنګیدونکو مجاهدینو ته یې سپیڅلی ډګر او مبارک سنګر پرانیست، او د شیخ




صیب مزل هم رالنډ شو چې خوشحالي یې له حده زیاته وه او د رب حمدونه یې ادا کول.

ابتدآء د شیخ صیب تعلق او رابطه د خراسان ولایت نائب عبد الرؤوف خادم تقبله الله دملګرو سره وه، او د هغوی په غوښتنه یې ورته یوه ارزښتناکه رساله هم ولیږله چې په قیمتي نصائحو او مهمو لارښودنو مشتمله وه.

چې لږه موده وروسته ورته د خراسان والي حافظ سعید خان غږیز پیغام راغی، شیخ صیب ته یې دعوت ورکړی و، چې عراق او شام ته د هجرت اراده ترک کړي، او خراسان ته هجرت وکړي، ځکه دلته ورته ضرورت زیات دی، نو هماغه وه چې شیخ صیب هم تیاری شروع کړ او دا هغه وخت و چې د پاکستان استخباراتو هم نور زړه راتنګ شوی و او یوه شپه د شیخ صیب کور ته راغلي و، خو الله عزوجل ترې وساته او په خفیه ترتیب سره افغانستان ته راغی، دلته سیمه ایزو علماؤ او ولس یې تود هرکلی وکړ، او په ویاړ یې ځای، ځای جلسې منعقد شوې، په مختلفو رادیوګانو کې یې برنامې مقرر شوې، د تدریس لپاره ورته د ننګرهار او کنړ مشهورو مدارسو وړاندیزونه وکړل، خو د شیخ صیب اراده بدله وه، او د لږ ځنډ څخه وروسته یې د لوی الله په مرسته هجرت وکړ.

د اسلامي خلافت په تمکین کې ژوند:

کله چې شیخ صیب د دار الاسلام پیښې سیمې ته راورسید، الله عزوجل ته یې د حمد سجده وکړه، او سخت د خوشحالۍ احساس یې کاوه، شیخ عبد الحسیب یې لا له مخه هرکلي ته راغلی و، ابتداء د شیخ صیب اراده دا وه چې بیعت کوم بیا بیرته لاندې کېوزم او د اهل سره به هجرت وکړم، خو په لار کې یې د هجرت اراده وکړه، شیخ عبد الحسیب تقبله الله ویل چې په لار کې مې دعاګانې کولې چې ربه ته د شیخ صیب زړه هجرت ته مایله کړه، خو کله چې ملګرو یې خبر کړ چې د هجرت په نیت راغلی، نو سخت خوشحاله شو د شیخ عبد الحسیب په ملتیا تختو ته د حافظ سعید خان خواته ورغلل، حافظ صیب یې هم تود هرکلی وکړ، او څلور شپې یې ورسره یوځای وکړې، په تختو کې شیخ صیب د خلافت په تایید د (الخلافة الموعودة) په نوم ۵۰ دقیقې لړی ویډیویی بیان وکړ، او برملا یې د پاکستان استخباراتو، افغانستان حکومت او د دوی بادارانو امریکایانو په خلاف مسلمانان جهاد ته راوبلل، د جهاد د تجدید غږ یې پورته کړ، چې له مرکز څخه رسمي نشر شو. بیا حافظ صیب ورته وویل چې د تمکین په ټولو سیمو یوه دوره ووهه، چې ټول مجاهدین تشویق شي، هماغه وو، چې شیخ صیب خپل سفر پیل کړ، د عد الخیلو څخه رانیولی، پیښې، مامند، کوټ، ګورګورۍ پورې لاړ. بیا یې باندر او نازیانو ته اراده وه ،خو ژوند ورسره وفا ونه کړه.

کله چې شیخ صیب له تختو څخه راکوز شو نو د مجاهدینو هر مرکز ته یې سر ورښکاره کاوه او مشرانو ملګرو سره یې ملاقاتونه کول، چې ددغه جملې څخه یو شیخ منصور و، چې واقعه یې ډیره جالبه ده، شیخ منصور چې په شدت سره یې د شیخ جلال الدین انتظار کاوه، کله چې شیخ صیب د هغه کور سورکمر مامند ته ورغی، نو شیخ منصور ورته ښه میلمستیا وکړه. په مجلس کې شیخ منصور ته شیخ جلال الدین وویل چې شیخ صیب ما پیژنې؟ هغه ورته وویل: ولې دې نه پیژنم، ما خو ستا زیاتې مناظرې کتلي دي، خپل د سعودي ژوند پرمهال مې ستا بیانات او درسونه تعقیب کړي دي، الحمد لله یو حق پرسته شیخ یې! شیخ جلال الدین ورته په خندا شو، وایي شیخ صیب ودې نه پیژندلم! هغه هم حیران شو، چې د شیخ هدف څه دی؟

شیخ جلال الدین ورته کیسه شروع کړه، چې شیخ صیب ستا یاد شي چې ته د پیښور فلانۍ مشهورې مدرسې ته روان وې، او له تا څخه یو بل کس هم ددغه مدرسې ادرس وغوښت، تا له ځان سره کړ، او بیا پدغه مدرسه کې داخلي بندې شوې وې، هغه کس خفه او پریشانه ناست و، بیا ورته تا داخله واخیسته. او د سعودي څخه راګرځیدو پرمهال به وخت نا وخت مدرسې ته راتللی او د هغه هلک پوښتنه به دې کوله، هغه ماشوم دې یادیږي؟

اوس د شیخ منصور ذهن کار وکړ، وایي هو والله ما خو دغه مدرسه کې جلال الدین په نوم ماشوم داخل کړی و، اوس هم راته ښه یاد دي، خو زما څه فکر و چې هغه جلال الدین به ته یې، خه ته هماغه جلال الدین یې؟ شیخ صیب ورته ویل هو هغه زه وم چې د دغه مدرسې داخلې وخت تیر و، ماته یې داخله نه راکوله ،خو تا زما سفارش وکړ، او ستا د لحاظه یې ماته داخله راکړه، دغه وخت نو شیخ منصور باندې خوشحالۍ له امله یو نآشنا کیفیت طاري شو، چې د لیکلو څخه بهر دی.. او زیات حمدونه یې ادا کړل چې زما د لاس نیالګي نن میوه نیولې ده او له سیوري یې ډیری عالمونه استفاده کوي.

د جهادي دورې په سلسله کې



چې کله کوټ ته لاړ، نو مخلص (سپرغۍ) ورسره ځان لازم کړ او شيخ ته يې ويل چې ما ځان سره د لارې ملګرى کړه، سره ددې چې دغه وخت هغه د بټي کوټ مسؤول ټاکل شوی و، خو ويل يې چې زه حافظ صيب ته وايم چې ما د بټي کوټ مسؤول په ځاى د شيخ جلال الدين محافظ وټاکي، خو بيا ورته شيخ صيب قناعت ورکړ او په خفه زړه رخصت شو. ددې څخه وروسته شيخ صيب هسکې مېنې ته لاړ، هلته د نورو مجاهدينو ترڅنګ عمر کاروان د زياتې مينې او خلوص اظهار وکړ او له بياناتو يې استفاده وکړه. په تمکين کې لر بر د هر کور، هر موټر، هر مسجد او حتى هر مجاهد په ايم پي تريانو کې د شيخ صيب بيانات اچولي وو، او هر خوا د همدې بياناتو غږونه اوريدل کېدل.

د تمکين ټولو مجاهدينو شيخ صيب سره له حده زياته مينه کوله، تقريبا شل کسه مشرانو مجاهدينو حافظ صيب ته دا وړانديز کړی و، چې مونږ شيخ صيب سره محافظين او خادمين وټاکه، خو حافظ صيب ورته د سلمان خراساني په شمول پنځه تکړه ملګري ورکړي وو، چې هره لمحه به ورسره يوځاى وو.

شيخ صيب پدغه ټولو سيمو کې مجاهدين قتال او د طالبانو خلاف جګړې ته راوبلل، هغه خلک چې د طالبانو په ارتداد کې يې شک کوو، د شيخ د وضاحت او مدللې څېړنې وروسته د هغوى شکوک هم د منځه لاړل، او بيخي هر مجاهد استشهاد او انغماس ته تيار شو. د دار الکفر څخه خواصو او عوامو د شيخ صيب دعوت ته لبيک وويلو، او د هجرتونو دوامداره لړۍ شروع شوه. او د خلافت په ليکو کې د شيخ صيب لسګونو شاګردانو قرباني ورکړه او ځېنې لا هم ددې مبارک صف لارويان دي. ثبتهم الله على الحق.

کله چې شيخ صيب د تمکين له يو طرف دورې څخه راوګرځېد نو حافظ صيب عالي شورى ته وغوښت، او هلته يې د المکتب الشرعي مسؤول وټاکه، چې هغه وخت ددرې اداراتو څخه عبارت و، دعوت، حسبه او شرطه. شيخ صيب شپه او ورځ کوشش وکړ چې دعوت او د منکراتو مخنيوي په پار مؤثر او چټک اقدامات ترسره کړي، د اداراتو نظم يې راجوړ کړ، هرې سيمې ته يې د ادارې ملګري وليږل، د نازيانو څخه ګورګورۍ پورې يې خپل ملګري خواره کړل او لازمې سپارښتنې يې ورته وکړې، د پيښې او لته بند په شمول په ټولو سيمو کې يې د



زيارتونو په هکله د ورانولو فرمان صادر کړ، او خپله يې عملا نظارت کاوه.

ددې سره د مجاهدينو خطونو او سنګرونو ته يې دوامداره تګ راتګ درلود، او د عدلخيلو بيز په جنګ کې يې خپله شرکت وکړ، او دا غزوه يې د مفتاح الخير په نوم ونومولـه، او د معرکې په دوران کې يې مسلمانانو ته او خليفة المسلمين أبو بکر البغدادي ته په عربي ژبه جامع کلمات وړاندې کړل.

بيا د امريکايانو او افغاني مرتدينو قوې سره په دويمه او دريمه ورځ جنګ کې هم شامل شو، چې دغه جنګ کې شيخ عبد الحسيب او سيف الاسلام مولوي صيب پشمول اکثر مشران زخميان شوي وو، شيخ صيب د حافظ سعيد خان په ملتيا د جنګ په شيبو کې په ټولو سنګرونو وګرځېد، مجاهدينو ته يې ډاډ ورکړ، مجاهدينو هم چې کله حافظ صيب او شيخ صيب په سنګرونو کې وليدل نو حوصلې يې بيخي لوړې شوى، چې بيا يې داسې د شجاعت ډکې کارنامې وکړې چې انسان يې له تصور څخه عاجزه دى. يو مجاهد چې راکټ چي و، د پوستې څخه راروان ټانک يې هدف ګرځاوه چې پدې کې راکټ مرمۍ پوچه شوه، خو ددغه مجاهد زړه کې د غره په اندازه ايمان و، چې را روان ټانک يې په تش راکټ لانچر باندې وواهه، خو ټانک په تيښته بريالى شو. او پوسته يې دغه مجاهدينو ته پريښوده.

شيخ صيب په تمکين کې يواځې درې مياشتې تيرې کړې وې خو د الله په مرسته يې دومره کارونه وکړل چې عام خلک يې په کلونو کې نشي کولاى. ذلک فضل الله يؤتيه من يشآء.

خلاصه دا چې شيخ صيب په تمکين کې د يو مفتي، قاضي، سنګري مجاهد، محتسب، داعي، معلم، مدرب او يو خه رهبر حيثيت درلود. تقبله الله.

### د شيخ مجاهد محمدي هجرت:

د شيخ صيب مشر ورور شيخ مجاهد محمدي نومېده، چې يو پياوړى او جيد شيخ و، د علم، مضبوطې حافظې، خايسته اخلاقو، تواضع، حياء، شجاعت او د ظاهري حسن مجمع وه، لمړۍ زده کړې يې په پيښور کې له عرب استاذانو څخه کړې وې، بيا کراچۍ مشهورې مدرسې جامعه أبي بکر ته لاړ او دفراغت سند يې د ګوجرانوالې مشهورې مدرسې محمديې څخه ترلاسه کړى و. د فراغت څخه وروسته د پاکستان په مختلفو مهمو ښارونو کې يې درس تدريس او خطابت کړى دى، الله عزوجل ورته عربيت او خطابت فن کې خاص مهارت ورښلى و، تر دې



چې پنجاب طرف به ورته خطيب الاسلام لقب ورکول کيده. د ملګرو د مديريت ښه وړتيا يې درلوده، د



کلک عزم او مضبوط جسم خاوند و. جهاد سره يې بې کچه مينه درلوده. د امريکايي اشغال پر وړاندې يې کلکه مبارزه کړې ده، د کنړ او ننګرهار مختلفو محاذونو ته حاضر شوی او ډيرى ستړياوې يې ګاللي، او د ځېنو محاذونو رهبري يې هم کړې. د پاکستان حکومت پرضد مبارزې ته يې زيات خلک چمتو کړي و، څو ځل پرې استخباراتو چاپه وهلى خو الله عزوجل ترې ژغورلى، په مختلفو ساحو کې ممنوع الدخول اعلان شوى و، د اسلامي خلافت سرګرم داعي و، او د شيخ جلال الدين هجرت پر وخت يې غوښتل چې له شيخ صيب سره يوځاى هجرت وکړي، خو هغه له ځان څخه وروسته پاتې کړ، چې وروسته به راشي.

هماغه وه چې شيخ صيب پسې دوه مياشتې وروسته يې د خپل اهل وعيال سره هجرت وکړ، او د ژوند يواځنى هدف چې هجرت و، الله عزوجل پوره کړ، تمکين ته د شپې پرمهال راورسېد، بيخي نابلده و خو لار کې ورسره شيخ ابو عمر مخ شوى و، او خپل کور ته يې بوتلى و، هلته يې ورته ښه اکرام کړى و او سهار ناوخته يې بيا رخصت کړى و.

ورځ دوه وروسته شيخ مجاهد محمدي، د شيخ جلال الدين، شيخ سلمان خراساني او سيف الاسلام مولوي صيب سره په ګډه حافظ سعيد خان ته ورغلل، هلته يې ورسره لاس په لاس بيعت وکړ. حافظ صيب ورته سپارښتنه وکړه چې کور دې برابر کړه، چې د اسلامي نظام خدمت ته جوګه شې.

### د شيخينو شهادت:

د شيخ صيب جلال الدين د هجرت

دریمه میاشت شروع وه، او د شیخ مجاهد محمدي د هجرت لسمه ورځ وه، د ۱۴۳۶ قمري کال د محرم الحرام لمړی نیټه وه، د معسکر مسؤول بلال استاذ لخوا ورسره اړیکه ونیول شوه چې تربیتي دوره فارغیږي او تاسې یې اختتامي مجلس ته راشئ، بلال استاذ ورته په مخابره کې شفر ورکولو سره د مامند خروه سیمه یاده کړې وه، خو شیخ صیب شفر کې خطا شوی و او هغه خیال دا و چې استاذ د مامند لته بند انتظار ګاه یادوي. دواړه شیخان د زید، اسامه او نورخان ډرایور سره انتظار ګاه ته راغلل. په دغه وخت مونږ بهر پیړې ته ولاړ و، چې سپیني کرولا څخه دوئ راکوز شول، او پورته راوختل، ما سره څنګ ته د شیخ جلال الدین یو شاګرد هم ولاړ و، کله چې شیخان رانږدې شو نو دا ور وړاندې شو او دواړه یې تالاشي کړل، که څه هم ددې ملګري مخ پټ و ،خو شیخ دومره ذهین او زیرکه و چې خپل شاګرد یې وپیژانده ، په مینه یې ورغږ کړ : ماشاء الله فلانکیه څنګه یې ؟

په لومړیوکې تمکین نا اشنا نظام او مظبوط اصول و ، چې ټولو مشرانو او کشرانو ته یو ډول و ، او هیڅ مشر هم په دې نه خفه کیده چې د هغه اصولو لاندې به کله راتللو نو خوشالیدل به ، چې له هغې یو هم په ځېنو ساحو کې د تالاشۍ اصول و .

بیا یې مونږ سره روغبړ وکړ، دننه لاړو، ملګرو ورته چای راوړ،د شیخ مجاهد خوله بیخي له خندا ډکه وه، خو شیخ جلال الدین دغه ورځو کې یوه پیچیده قضا څخه ایله فارغ شوی و، ځکه په سر یې درد و. خو کله چې خبر شو چې دوره خو دلته نه فارغیږي ،نو سخت خفه شو چې مونږ ځای خطا کړی، خو دلته راتګ له امله یې آخري دیدن زمونږ په مقدر و، ملګرو سره یو ساعت کیناست او بیا یې وعده وکړه چې ان شاء الله ستاسې دورې فراغت مراسمو ته به درځم او بیا رخصت شو.

زمونږ څخه چې لاندې تللی و ، هلته یې شیخ منصور او شیخ ابو عمر سره هم آخري ملاقات کړی و، د راتلونکي جمعې کارونه یې سره تقسیم کړي و، شیخان دواړه کور ته په لار وو، چې اسدخیلو پل سره یې عباس قاري صاحب ولیدل، هغه له کوټ څخه د شیخ صیب ملاقات او د اداري راپور ورکولو ته راغلی و، شیخ صیب خپل ملګري اسامه ته وویل چې ته کوز شه او عباس قاري صیب یې ځان سره موټر کې کیناوه، بیا هماغه وه چې مازیګر ناوخته مو یو درونډ غږ تر غوږه شو، خو لا هم مونږ خبر نه و، ماخستن ناوخته خبر شو چې پدغه ډرون برید کې شیخان صاحبان د خپلو دریو ملګرو په شمول د ویشتل شوي دي . تقبلهم الله. دا نو زمونږ د ژوند تر ټولو ترخه شپه وه، مونږ لا هم په تردد کې و ، چې شاید یو خو به ژوندی وي، شپه بیخي اوږده شوه، چې کله سهار شو، د معسکر وخت مو هم پوره و، ټول ملګري د تاسیسي لپاره خروې ته روان شو، چې په سور کمر کې بلال استاذ ولاړ و، مونږ یې له نورو ملګرو راجدا کړو، او کلکه غاړه یې راکړه، له سترګو یې اوښکې روانې وې نو مونږ هم پوهه شو چې نور دې خبره کې د شک او تردد مجال نشته، خبره یقیني ده.... بلال استاذ پورته د شیخ منصور کور ته وخیژولو، هلته شیخ عبد الحسیب هم ناست و، او د نیابت یې اوله ورځ وه، مونږ ته یې زیاته تسلي راکړه، او شیخ صیب جلال الدین یې خپل استاذ وباله خو کله چې مونږ د هغه په خبرو خپل ډاډ ترلاسه کړ نو بیا د هغه اوښکې بې اختیاره روانې شوې... او دا الفاظ یې زما اوس هم په یاد دي، ویل یې: شاید چې بیا د شیخ جلال په شان عالم هیچرې ونه وینم!

بیا د دواړو شیخانو کورونو ته لاړو، زیات ملګري ډاډ او تسلي ته راتلل، شیخ منصور، عمر کاروان، سیف الاسلام مولوي صیب، طاهر مولوي صیب په شمول زیات ملګري راتلل او هر یو خپله برخه ډاډ ګیرنه راکوله. بیا د شیخانو قبرونو ته لاړو، پنځه قبرونه په قطار و، د شیخ مجاهد، شیخ جلال الدین، قاري عباس، نور خان او زید د ټولو قبرونه د سنت طریقې بیخي موافق جوړ و، د خپلو خپلوانو څخه لرې دهجرت په دیار کې د یو خړ غره په ډډه کې خښ شول. تقبلهم الله أجمعین.

### د خالد (ضیاء الاسلام) هجرت:

د شیخانو شهادت څخه لږه موده وروسته د شیخ صیب کشر ورور چې خپل نوم یې ضیاء الاسلام او شفري نوم یې خالد و، هجرت وکړ، ضیاء الاسلام چې د قرآن کریم جیډ قاري و، او د مکتب ترڅنګ یې دري درجې دیني سبقونه هم ویلي و. د ماشومتوب راهیسې د غیرتي خوی خاوند و، دار الاسلام ته یې هجرت وکړ، دلته د تاسیسي دورې څخه وروسته د خلافت جامعه کې یې خپلو سبقونو ته دوام ورکړ، او ماسپښین یې د یوې حلقې استاذي هم کوله، خو لږ وروسته قاري خالد هم خطونو او سنګرونو ته مخه کړه، او استشهادي کتیبه کې یې نوم لیکنه وکړه. او د مسؤول قاري محسن لخوا خطونو ته ولیږل شو، هماغه وه چې ګورګورۍ خطونو او رباطونو پورې یې ځان هر سنګر ته ورساوه ، یوه ورځ چې وحشي امریکایانو او افغاني مرتدینو د فضا او ځمکې له لارې د ګورګورۍ په تمکین برید وکړ، دې بل طرف د خلافت انغماسیانو هم د الله د رضا او اسلامي نظام ساتنې په پار ځانونه چمتو کړل، مجاهدینو انغماسۍ لپاره نومونه لیکل، د هغه ملګرو مسؤول ډاکټر بلال راته کیسه کوله چې خالد د دوه نورو ملګرو سره یوځای راغی او راته یې وویل چې زمونږ نومونه هم انغماسیانو کې ولیکه، ما ورته کړه چې تاسې درې واړو سترګو نظرونه کمزوري دي، چشمې مو اچولي دي، نو تاسې باید دفاع لپاره وروستي صفونو کې نومونه ولیکئ، وایي خالد راته بد بد وکتل او ویې ویل چې دفاع لپاره مو بوځې نو مونږ بیخي تا سره نه ځو، لاړل او د کتیبة الفتح مسؤول قاري سعید سره یې خبره وکړه او هغه هم د دوئ شوق او جذبې قدر کولو له امله په لمړیو انغماسیانو کې د دوئ نومونه ولیکل، او بیا هماغه وه چې د نورو ملګرو سره دوی هم تر ټولو مخکې خپلو پوستو ته ځانونه ورسول، خو متاسفانه چې پوستې ته داخلیدو وروسته د یو مرتد لخوا د خالد په لور ګرنیټ راوغورځول شو، چې دده په خیټه کې چرې لاړې او زخمي شو. پوسته فتحه شوه، مرتدین الله عزوجل ذلیله کړل، او تر څلویښتو زیات مرداران هم شوي وو، مجاهدینو حمدونه ادا کړل او بیا یې زخمي خالد راواخستو، لورې مینې د لارې یې اوغز ته راوړ، چې دلته یې وکتلو نو د ګرنیټ چرې یې نس ته داخلې شوې وې، او کولمې یې ورته سورۍ کړې وې، د اوغز ډاکټرانو که څه هم ددې څخه مخکې د کولمو عملیات (آپریشن) نه و کړی، خو دا یې لمړی عملیات (آپریشن) و، او کامیاب شو، مونږ هم ورغلو، ومو کتل، سخت راته خوشحاله شو. د هغه د سفر او حضر ملګري اسد الله بدخشاني تقبله الله او ضیاء الله کنړي تقبله الله ورسره په خدمت موظف و، چې زمونږ حضور ته یې هیڅ اړتیا نه درلوده، او د ډاکټرانو لخوا یې د صحت ډاډ راکړل شو، او د طبي اصولو موافق یې مونږ رخصت کړو. د زخم په حالت کې هم خالد د الله عزوجل ذکر کاوه، بیا څو ورځې وروسته یې آپریشن بیرته شکیدلی و، او بیا یې ورته عملیات کړي وو، چې دغه وخت مونږ په یو سفر و، کله چې بیرته راوګرځیدو او دا اراده مو درلوده چې اوغز ته یې پوښتنې ته ورشو، په لار کې خبر شو چې هغه شهید شوی دی او خښ کړای شوی هم دی. بیا څه موده وروسته مونږ اوغز ته لاړو، له یو بل څخه مو ډېره دده د قبر پوښتنه وکړه، خو چا چې خښ کړی و، هغوی مو پیدا نه کړل، او تر ننه ددغه ګلالي خالد قبر لا درکه دی. تقبله الله.

هو! دا و هغه درې ستوري چې د خراسان پر افق وپړقیدل ، وځلیدل ، دومره رڼا او ځلا یې وشیندله چې د ستر هدف په لور د تللې لار ټول تیاره ګوټونه یې د خپلې هم رکابه قافلې لپاره روښانه کړل ، د بوې میړنۍ مور په غیږ کې پالل شوي دې دریو ورونو د تاریخ بابونه په خپلو وینو رنګین کړل تقبلهم الله ، د شیخ جلال الدین او ورسره په شهیدو شویو ورونو په علمیت ، اخلاقو ، کارنامو او حماسو کتابونه لیکل کیږي ، هر یو ملګري سره یې په هره برخه کې ځانګړې خاطرې او کیسې دي خو د مجلې ددې برخې له برداشته بهر دي موږ به یوازې د شیخ جلال الدین تقبله الله په اړه دده د یو بل ملګري مجاهد شیخ څو خاطرې تاسې سره شریکې کړو :



[فضل الکریم المتعال]

### [في ذکر بعض فضائل الشیخ جلال]

دشیخ جلال الدین تقبله الله سره زما ناسته او ولاړه صرف د دین په وجه منځ ته راغلې وه ، په دی کې بل هیڅ کوم سبب داخل نه و، شیخ تقبله الله د خایسته اخلاقو سره سره د ډیرې قوي او راسخې حافظې خاوند وو، په دې باب کې پرې الله لامتناهي پیرزوینه کړې وه ، دقران او حدیثو سره ، سره یې د عربي قواعدو هم راسخ علم درلوده ، یادمې شي چې کله ما دتقلید په رد کتاب

ولیکه ،نو جناب شیخ تقبله الله ته مې دتقریظ د پاره ورکړ ، شیخ چې ماته ددې ځومره خوښي ښکاره کړه اوس مې هم د هغه هاغه کلمات یاد دي، چې دا د شیخ تقبله الله له کریمه عاداتو څخه وو چې که کوم ملګري کې به ځومره هم علمي کمزوري وه، نو کوشش به یې دا و چې د هغه حوصله افزایي وکړي او هغه ته هغه ډاډ ورکړي چې دهغې په وجه د هغه د مطلوب کار سره شوق او دلچسپي نوره هم زیاته شي، شیخ تقبله الله سمدستي یو کاغذ ته لاس وروړد کړ، قلم یې له جیب څخه راوویسته او لیکل یې شروع کړل ، زما ګمان وو دوه درې کرښې تقریظ به په پښتو ژبه کې ولیکي، خو چې کله له لیکلو څخه فارغ شو او ماته یې ویل دا زما هغه اظهارات دي، چې ستا د کتاب متعلق مې ولیکل، ما چې کله خط ته وکتل نو د کاغذ دواړه مخه یې ډک کړي وو او لیکل یې هم په عربي ژبه کړي وو، عربي لیکل اسان هم نه دي او بیا داسې عربي سبحان الله چې ماڅومره خلقو ته ښودلې هغوی اول داخبره کړی چې دا لیکل کوم عرب عالم کړي دي، عجم او داسې لیکل!!

ځکه په یو ځل مسلسل لیکل بغیر له دې چې نظر ثانی پری وشي او هغې کې دې صرفي او نحوي څه غلطۍ نه وي، دا یقیناً ګران کار دی ، شیخ رحمه الله سره زموږ د تعلق له جوړیدو لږ وروسته هغه هجرت وکړ،او د اسلامي دولت خراسان ولایت ته راغی، کله چې دهغه صوتي بیانات او مرئی اصدارات نشر شول ،نو ددین دشمنان ډېر وردریدل ، تا به ویل چې ګویا دپیښور زړه له سینې څخه وتلي دی ، موحدین مسلمانان د شیخ تقبله الله په دې کار خوشحال وو، خو هغه خلق چې د ای ایس ای د ادارو طرف دار وو ، هغوی نو لولپه شول ، ځکه د شیخ تقبله الله تقوی، صداقت او د باعمله علم قیصې او ثبوتونه ټولو ته رسیدلي وو، د هغه په هجرت او خلافت سره په بیعت کولو هغو خلقو ته هم د خلافت دحقانیت جانب ښکاره شو چې هغوی د بلاعمه درباري ملایانو او دا مدني شیخانو او د مرتدو حکامو په شیطاني وسوسو څخه په شک او تردد کې واقع شوي وو لِّيَهْلِكَ مَنْ هَلَكَ عَنۢ بَيِّنَةٍ وَيَحْيَىٰ مَنْ حَىَّ عَنۢ بَيِّنَةٍ وَإِنَّ اللَّهَ لَسَمِيعٌ عَلِيمٌ (ژباړه) تر څو هلاک کېدونکي له ښکاره دلیل سره هلاک شي او څوک چې ژوندی پاتي کېدونکي دي، هغه له روښانه دلیل سره ژوندي پاتې شي. په باوري ډول الله اورېدونکی او پوهېدونکی دی.

شیخ تقبله الله له کریمه عاداتو څخه داهم وه چې هغه به کوشش کولو چې هر ملګری د خیر په کار کی استعمال شي ،چې دا یقناً هغه کامله خیرخواهي ده ،چې الله تبارک وتعالی د انسانانو ترمنځه په هغوی فرض ګرځولې ده ، شیخ تقبله الله دمخکې نه هم جهاد سره بی حده محبت وو او څو ځله یې د امریکایانو او نورو مرتدینو خلاف د موحدینو امیرانو په قیادت کی سنګرونو کی وخت تیر کړی وو، خو د هغه د درسونو یو مهم هدف هم دا وو، چې اسلامي امت اتفاق او یو والي طرف ته وهڅوي، نو د خلافت د اعلان څخه مخکې به یې د خلافت متعلق بیانونو کې د هغې یادونه کوله ، نو کله چې خلافت اعلان شو او په دې مطمئن شو چې دا د کوم کافر او یا مرتد نظام سره اړیکې نه لري، نو ددې طرف یی دعوت شروع کړ او ددې د حقانیت دلایل به یې مجالسو کی بیانول ،تر دې چې د لشکر خبیثه چې د ای ایس ای اداره ده، د هغوی له طرفه شیخ تقبله الله د نیولو او اسیر کولو خسیس ناکام او مذموم کوششونه شروع شول ، شیخ تقبله الله ، الله تبارک وتعالی په خپل خاص فضل د دوی له توطیو وساته او دشمنان یی الله رب کریم خائبین ،خاسرین وګرځول ، ماته رایاد شول کله چی زما والد ګرامي تقبله الله د خراسان ولایت ته هجرت وکړ او د خراسان د والي جناب حافظ سعید خان تقبله الله سره یې بیعت وکړ دا هغه زمانه ده چې ماته الله عزوجل تر دې دمه دهجرت توفیق نه وو راکړی ، ماته مې والد تقبله الله ټوله قیصه وکړه د هجرت په دغه زمانه کې چې د هغه د شیخ جلال الدین تقبله الله سره ملاقات شوی و، هغه راته پلار داسې بیانوي: زه یو مسجد کې ناست وم، ډیری نور مجاهدین هم وو چا راته وویل دلته نږدې د شیخ جلال الدین کور دی، په همدې خبرو کې وو، چې شیخ تقبله الله نوراني څیره مسجد ته رادننه شو، خو چې کله یې دخلقو ترمنځ په ماسترګی ولګیدی، نو بې حده زیات د خوشحالی اظهار یې وکړ او په غیږ کې یې کلک ونیولم او ډیر عجیب ، عجیب کلمات یې زما په مدح کې له خولې مبارکی څخه راووتل ، پلار مې ویل چې : بیا کله زه د جناب حافظ سعید خان تقبله الله په امر بیرته راستنیدم ، نو شیخ تقبله الله راسره بیا مخامخ شو او د الله په امانۍ په وخت کی یې راسره ښکلی صحبت وکړ او بیا یې جیب ته لاس کړ او پنځه زره ۵۰۰ کالداري را وویستې ماته یې راکړی ، چې دا به دې زوی ته ورکړې او ورته به ووایي چې که د هجرت کولو خرچه درسره نه وي، نو په دې د لارې خرچه کیږي، دلته علماؤ ته ضرورت دی او هجرت فرض شوی دی ، فوراً هجرت وکړه او راشه ، ځکه مجاهدین د شرعي احکامو زده کړو ته حاجت لري او دا د اهل حقو علماؤ فرض جوړیږي، چې د حق دعوت او خدمت وکړي والد صېب مې ویل: چې کله زه راروان شوم ،نو د ډیر مزل د کولو نه وروسته راپسې شاته یو مجاهد اوازونه کول او رامنډې یې وهلې ،مونږ ودریدو چی دا به څوک وي او څه به وایي چې کله مونږ ته راورسیده راغی نو هغه د شیخ تقبله الله د ملګرو څخه یو مجاهد وو لاس کی یې خط نیولی وو، خط یی راکړ او راته یې وویل چی شیخ تقبله الله وایي چې دا خط به دې هم زوی ته ورکړې والد تقبله الله مې ویل : چی ما کله خط خلاص کړ، نو خط کې یې د اسلامي خلافت د حقانیت او ددې د مخالفینو د ردت مختصر،مختصر دلایل او بیا یې ماته د هجرت کولو په تاکید سره لیکل کړی وو، والد صاحب مې راته وویل :چې په دیر تاکید یې له تانه دهجرت کولو مطالبه کړې وه او ستا د ضرورت یې یادونه یي کړې وه، خو چونکه لاری ډیرې خطري وی، د افغان مرتدینو بې شماره پوستې او د وطني طالبانو هغه غلچکی چیک پاینونه چې د پاکستان په امر یې ځاې پر ځای ددې د پاره اچولي وو چې څوک د اسلامي خلافت لیکو ته ورنه شي او یا هم له هغه ځایه بل طرف نقل نه شي، نو د ملګرو په مشوره مونږ دغه خط هلته د یو ګټ څخه لاندې کیخوده ،ددې یرې څخه چې که دا چرته د تالاشۍ په وخت کی راښکاره شي، نو الله مه کړه زما اود ملګرو د خطر سبب نه شي، نو په دې مو فیصله راغله چې دغه لیک کې چې کوم مقصود دی ، دابه ورته زه په خوله ووایم اوس عذر دی، دا ورته نه شو وړلی بس په همدی مو د ملګرو سره مشوره راغله او خط مو هلته د ګټ لاندی کیخوده او راروان شو .... نو دا د شیخ متعلق د خیر خواهۍ او د حق طرف د دعوت او جهاد سره د مینې ، محبت او شوق څو کلمې وی چی تاسو ته مو ذکر کړې.




بیا د غیرت او بیا د ننگ ورځې دي
ځوانانو پاڅئ چې د جنگ ورځې دي

بیا مو توحید، ایمان خطر سره مخ
بیا د پاڅون، بیا د غورځنگ ورځې دي

جګړه راغلې ده د ښار کوڅو ته
دي مشرکین په وینو رنګ، ورځې دي

بیا د نړۍ کفر اشر کړی دی
د موټر بم د درانه کړنگ ورځې دي

هله را واخله د بابا توره دي
همدا موقع ده ورک کړه زنګ، ورځې دي

حورو ته ورم ډالۍ پرهر سینه مې
په مونږ یې دغه د قلنګ ورځې دي



# د سیرت درسونو ته پوځي کتنه !




## په مدینه کې د قوت او زور د بنسټونو له پیاوړي کولو وروسته!

د مسجد له جوړولو وروسته نبي صلی الله علیه وسلم د ټولنې د لومړي مشکل د حل لپاره تیزي وکړه، چې هغه کورني جنګونه و، هغه جنګونه چې سلګونه کاله یې دوام درلود، قبائل یې ټوټه ټوټه کړي وو، ګل ګل ځوانان یې خوړلي وو، او دې جنګونو یهودو ته موقع ورکړې وه چې د عرب ټاپو وزمې په دغې مزیدارې ځمکې پښې ټینګې کړي، نبي صلی الله علیه وسلم د دواړو قبیلو له منځه د کینې د ریښو لپاره کوښښ پیل کړ، او د مسلمانانو ترمنځ یې د ورورۍ تړون وکړ.

ابن اسحاق فرمایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپلو ملګرو ترمنځ د انصارو او مهاجرینو ترمنځ د ورورۍ تړون وکړ، د الله لپاره وروري وکړي، دوه دوه ورونه شئ.

په دې کار انصار ډیر زیات خوشاله شول، هغه قدم چې دوی پکې د خپل امید پوره کېدل ولیدل، دا هغه سوله وه چې یثرب ترې سلګونه کلونه بې برخې و، مهاجرین هم خوښ شول ځکه چې د ورورۍ نتیجه دا شوه چې د خپلو انصارو ورونو په غېږ کې ووسیدل او هغوی ورسره د سخت فقر او نورو مشکلاتو د کمولو او ختمولو په برخه کومک او مرسته کوله، هغه چې مهاجرین ورسره د خپل اصلي وطن څخه د هجرت کولو وروسته مخ شوي و، او هلته یې خپل ټول مالونه پریښي و چې قریشو ټول واخیستل.

یوه نا آشنا واقعه چې د ستاینې څخه یې کلمات ناتوانه دي، د سعد بن الربیع او عبدالرحمن بن عوف ورورلي وه، سعد بن الربیع، عبدالرحمن بن عوف ته نیم مال وړاندې کوي او بیا ورته وایي:

زه په انصارو کې د ډیر مال خاوند یم، مال دوه برخې کوم، او دوه ښځې مې دي، ویې ګوره هر یوه چې دې خوښه شوه ماته یې نوم واخله، زه یې طلاقوم چې عدت یې تېر شو واده ورسره وکړه.

عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ورته وویل: الله دې ستا په أهل او مال کې برکت واچوي... بازار مو چیرته دی، د بني قینقاع بازار یې ورته وښود او هغه رضي الله عنه په کې تجارت پیل کړ.

نبي صلی الله علیه وسلم په دې کار سره یو بریالی قدم پورته کړ، تر څو ټولنه په مضبوطو ستنو ودریږي، له دې قدم څخه دعوت په پوځي برخه کې ډیره لویه ګټه واخیسته، د اوس او خزرج قحطاني قبائل به وخت په لویو کورنیو جنګونو کې تیراوه چې په جزیرة العرب کې ټولو ته معلوم و، له دغو جنګونو یهودو ګټه اخیسته تر څو په سیمه خپل واک ټینګ کړي.

خو مدینې ته د نبي صلی الله علیه وسلم له ننوتلو وروسته همدوی اساسي پوځي قوت و چې د اسلام پرې په جزیرة العرب کې د توحید د خپرېدو په برخه کې اعتماد و.

نور مشکلات هم و چې نبي صلی الله علیه وسلم یې باید هرو مرو حل کړي، دا مشکلات په مدینه کې د غیر مسلمو اوسېدل و، یهود دلته اوسېدل او هغوی درې قبیلې وې:

د بني قینقاع قبیله

د بني النضیر قبیله

د بني قریظه قبیله

او د مدینې منورې په شمال کې د یهودو یو لوی شمېر پروت و چې هغه د خیبر یهود و.

نبي صلی الله علیه وسلم د دې کار سره داسې چلند غوښت چې د مسلمانانو مصلحت پکې وي او په دغه وخت کې اسلامي دولت جوړ شي.

نبي صلی الله علیه وسلم تر دې مهاله د دوی په خلاف کوم دریځ نه و نیولی، نه یې اسلام ته په داخلېدو مجبور کړي و، بلکې د اسلامي دولت او یهودو ترمنځ تړون وشو او د تړون محتوا په لاندې ډول وه:

- په ګډه له مدینې دفاع کول
- په یو بل تجاوز نه کول او ښه ګاونډیتوب
- د عقیدې آزادي

په نبوي هجرت د شپږ میاشتو له تېریدو وروسته مدینه د اسلام حقیقي مرکز وګرځېد، نافذیدونکې خبره او غالب واک په کې د مسلمانانو و، دا هغه څه و چې قریشو ترې ډار درلود او په ټول توان یې هڅه وکړه چې مسلمانان له هجرت کولو څخه منع کړي، مګر وخت تېر و او دوی اوس درک کوله چې مخې ته یې خطر را روان دی.

په نبي صلی الله علیه وسلم شرعي قوانین رانازلېدل

لومړی د وسلې د پورته کولو اجازه وشوه د اسلام د دښمنانو په خلاف، په داسې حال کې چې له هجرت څخه وړاندې د مسلمانانو لپاره د جنګ کولو اجازه نه وه، د جهاد فرضیت په لاندې څلورو مرحلو کې شوی دی:

لومړۍ مرحله:

مسلمانان په مکه کې وو د نبي صلی الله علیه وسلم نه یې وغوښتل چې د جنګ کولو اجازه ورته وکړي، هغه ورته ځواب ورکولو: "صبر وکړئ ماته په جنګ کولو امر نه دی شوی"

دوهمه مرحله:

الله تعالی فرمايي: {أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَٰتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا وَإِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ} ژباړه: «هغو کسانو ته (د جګړې) اجازه ورکړه شوه چې پر خلاف يې په جګړه لاس پوري کيږي، ځکه چې هغوی مظلومان دي؛ او الله په يقيني ډول د هغوی د ملاتړ وس لري.» په تفسير د الوسي کې دي چې أبو عمرو، أبوبکر او يعقوب "يقاتلون" د مبني للفاعل په صيغه ولوست، يعنې دوی غواړي چې په راتلونکې کې د مشرکينو سره جګړه وکړي، په دې باندې حرص کوي، (بأنهم ظلموا) نه مراد دا دی يعنې په سبب ددې چې پر دوی ظلم شوی دی.

که فکر وکړې، د اسلامي دولت حال او د اسلامي پوخ وضعيت ته کتو د قتال حکم په تدريجي ډول راغلی، خو کله چې د دولت ستنې پياوړې شوې او زور يې يو څه پيدا کړ دريمې مرحلې ته لاړل.

دريمه مرحله:

په دې مرحله کې د هغه چاسره جنګ واجب و، څوک چې د مسلمانانو سره جنګېږي، الله تعالی فرمايي: {وَقَٰتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَٰتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓا إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ} ژباړه: «او تاسې د الله په لار کې له هغو کسانو سره وجنګيږئ، چې ستاسې سره جنګيږي، خو تېری مه کوئ چې الله تېری کوونکی نه خوښوي.»

له دې وروسته وروستی مرحله راغله چې د ټولو کفارو سره په کې د جنګ اعلان و.

څلورمه مرحله:

الله تعالی فرمايي: {وَقَٰتِلُوا الْمُشْرِكِينَ كَآفَّةً كَمَا يُقَٰتِلُونَكُمْ كَآفَّةً وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ} ژباړه: « له مشرکانو سره وجنګېږئ، لکه څنګه چې هغوی ټول يو ځای ستاسې سره جنګيږي. او وپوهېږئ چې الله د پرهېزګارانو ملګری دی.»

بيا د جهاد، قتال، د منافقينو سره د سختۍ باره کې آيتونه راغلل، د جنګ د اجازې سره سم نبي صلی الله عليه وسلم د صحابه وو په روزنه پيل وکړ، د جګړې چلونه يې ورته وښودل او له هغوی سره يې په تمرينونو، جګړو، او نمايشونو کې ګډون وکړ.

په دې موده کې د يهودو په وسه کې و چې د دوی او د نبي صلی الله عليه وسلم ترمنځ د شوي تړون په پايله کې خوشاله ژوند وکړي، په خپلو عقيدو، نفسونو او مالونو ډاډه وو، دا د دوی لپاره غوره وه چې همداسې مخته تللي وای، مګر د دوی په نفسونو کې جرړې ويستونکې طبيعي خويونه دوی دې ته پرېنښودل، بلکې د مشکلاتو په جوړولو او د مسلمانانو ترمنځ د فتنې په خپرولو يې پيل وکړ.

د يهودو کينه او غم هغه وخت لا زيات شو چې دوی په بشپړ ډول پوه شول چې مدينې ته راغلی رسول ريښتونی محمد بن عبدالله القرشي دی، هماغه نبي چې وعده يې شوې وه، هماغه نبي چې په اړه يې د دوی په کتابونو کې ليکل شوي و، خو پرځای ددې چې ايمان راوړي؛ د دوی نفسونه له کينې او نفرت څخه ډک شول، ټول وسائل يې په کار واچول چې د دغه دعوت مخه ونيسي، کله به يې چلونه کول، کله به يې د مکې د قريشو سره کومک کاوه، کله به يې د منافقينو سره کومک کاوه، او کله به يې د مسلمانانو ترمنځ فتنې اچولې.

د دوی د دغه دوو لويو علماوو زړونه د نبي صلی الله عليه وسلم په تاکيد سره له پريشانۍ او غم څخه ډک شول. دا دواړه يو حيي بن أخطب نومېږي د مؤمنانو د مور صفيې رضي الله عنها پلار او د هغه ورور ياسر نومېدل.

ابن اسحاق فرمايي: ماته عبدالله بن أبي بکر بن محمد بن عمرو بن حزم دا خبره وکړه: هغه له صفيې رضي الله عنها څخه روايت کوي فرمايي: زه پلار او کاکا (ياسر) ته ډېره ګرانه وم، هيڅکله له دوی دواړو سره نه يم مخامخ شوې مګر غېږ کې به يې نيولم، کله چې رسول الله صلی الله عليه وسلم مدينې ته راغی او په بني عمرو بن عوف کې د قباء ځای کې استوګن شو، پلار او کاکا مې سهار ووتل او ماښام ته نږدې راغلل.

هغه فرمايي: دوه ستړي، ستومانه و، مات رامات او نور يې مزل نه شو کړای.

هغه فرمايي: نو زه داسې په خوشالۍ ورغلم، لکه هر وخت به چې ورتلم، قسم په الله دواړو کې راته هيچا نظر ونکړ، سره د دې چې د غم نښې پرې ښکاريدې.

له کاکا مې واوريدل زما پلار ته يې ويل: آيا دا هماغه دی؟

پلار مې وويل: هو قسم په الله

کاکا مې وويل: آيا ته يې پېژنې او ثابتوی يې شې؟

پلار مې وويل: هو

کاکا مې وويل: نو په اړه يې څه دريځ لرې؟

پلار مې وويل: چې تر څو ژوندی يم دښمني به ورسره کوم.......!

دا خبره چې د سيرت په کتابونو کې راغلې له هغو مشهورو خبرو څخه ده چې د يهودو سخته دښمني له اسلام سره ترې معلومېږي، حافظ عراقي بيا وايي چې دا جمله منقطع ده د عبدالله بن أبی او صفيې ترمنځ.

جريان لري...



# لکه ستوري چې په
# شنه آسمان ځلېږي

لکه ستوري چې په شنه آسمان ځلېږي
خلافت به په دې ټول جهان ځلېږي

بیا سپین غر به د زمرو زلمو سنگر شي
تور بیرغ به په کې هغه شان ځلېږي

بیا به شرک او ارتداد له نړۍ ورک شي
بیا به هر لور ته دا سپین قرآن ځلېږي

څوک مرتد شول، څوک بې ننگه په کور ناست دي
خو ډگر کې لا ولاړ غازیان ځلېږي

له کشمیر تر اندلسه یو دولت وي
په اقصا مو تور بیرغ رپان ځلېږي

زندان مات وي، آزادي وي، خوشالي وي
ربه زړو کې مو دا یو ارمان ځلېږي



العزائم
مؤسسة العزائم
الإعلامية